# خلاصة الانساب

سره د پښتو ترجمې

مؤلف

## حافظ رحمت خان

ترجمه او دیباچه

محمّد نواز طائر




پېژندګلو

سیّد خیال بخاري

پښتو اکیډمي - پېښور یونیورسټي

د پښتو اکېډيمۍ د مطبوعاتو سلسله نمبر ۴۲

اولنے چاپ

کال .. .. .. .. .. ۱۹۷۳ء

تعداد .. .. .. .. .. يو زر (۱۰۰۰)

قيمت .. .. .. .. .. -/۸ (اته روپئ)

په اهتمــام

د

سيد خيــال بخارى

ناشر :ــ پښتو اکېډيمى پېښور يونيورسټى -

پبلشر :ــ سيد محمد احمد په حميديه پريس کښے چاپ کړو
او د پښتو اکېډيمۍ نه خور شو -

# پیغام

زما لومړے ورځے کېږی چه پېښور یونیورسټۍ ته راغلے یم۔ خو زما تعلق دے یونیورسټۍ او په تېره تېره اسلامیه کالج سره ډېر پخوانے دے۔ بلکه زما ټول ژوند هم دلته تېر شوے دے۔ څکه نو سره د دے، چه زۀ د دے لوړے ادارے نه د څه مودے د پاره بهر پاتے شوے یم، تعلق مے ورسره نۀ دے شلېدلے۔

اوس چه خدائے پاک نېغ په نېغو د دے یونیورسټۍ د خدمت موقع راکړے ده نو زما دا خواهش دے چه خدائے دِ اوکړی چه دا اداره یوه مثالی یونیورسټی اوګرځی۔ او دا یونیورسټی د کرۀ ورۀ هر څه نه د دے علاقے د مخصوصو روایاتو، کلچر او د ثقافت یوه هنداره اوګرځی۔ په دے لړ کښے د دے علاقے تاریخ یو ډېر ښکلے رونړ او د غور وړ پس منظر لری۔ څکه نو هر استاذ او شاګرد بلکه د قام هر یو فرد له پکار دی چه د خپل تاریخ څېنے څان خبر کړی۔

پښتو اکېډیمی د دے یونیورسټۍ یوه اهمه برخه ده چه بنیادی

کار نۀ علمی تحقیق او څېړنه ده او د خپلې ژبې ادب، شعر، تاریخ، آرټ، کلچر او ثقافت په حقله اهم کار ور په غاړه دے۔ زما د پاره دا د ډېرے خوشحالئ خبره ده چه زیا راتلو نه لږے ورځې پس دے ادارے د یو تاریخی کتاب ''خلاصة الانساب،، د چاپ کار سر ته اورسولو۔ دا زۀ یو ښۀ پال کنړم۔ دے سره ترلے یوه بله اهمه خبره دا ده چه دا کتاب د مردان د نوی کلی یو مخیر پښتون ښاغلی روشن خان په مالی امداد سرته رسولے شوے دے۔ په باهرنو ملکونو کښې خو داسے مخیر خلق ډېر وی چه ډېرے لوئے لوئے ادارے چلوی خو زمونږ په ملک کښې افسوس دے چه داسے فیاضه او د آرت زړۀ خاوندان ډېر کم پیښېږی۔ څکه نو زۀ د خان روشن خان د دے اقدام ډېره زیاته ستائینه او مننه کوم۔ بے ځایه به نۀ وی که زۀ د دے نه اول د اکېډیمئ د طرفه د یو بل اهم تاریخی کتاب تواریخ حافظ رحمت خانی په حقله دا یادګیرنه اوکړم چه دغه نوموړے کتاب هم د خان روشن خان په امداد او اعانت چاپ کړے شوے وو۔ د دے ذکر نه مے غرض محض د ښاغلی روشن خان د علم دوستئ اظهار نۀ دے بلکه دا مثال داسے نورو شته‌منو پښتنو ته وړاندے کول دی چه د دے په تقلید کښې د قام او ملک د خدمت د ښېګړے کارونو ته لاس راوړاندے کړی۔

عبدالعلی خان

(وائس چانسلر د پېښور یونیورسټئ)

# پیژندګلو

د تاریخي کتابونو په لړ کښې مونږ یو نوے کتاب خلاصةالانساب تاسو ته وړاندے کوؤ۔ د دے نه آګاهو مونږ د پښتنو یو نایاب او ډیر اهم او مستند تاریخ "تواریخ حافظ رحمت خاني" چاپ کړے وو۔ د دے کتاب ذکر یے د خلاصةالانساب په سلسله کښې ځکه اوکړو چه د دے دواړو کتابونو یو بل سره دوه قسمه تړون دے۔ یو خو دا چه تواریخ حافظ رحمت خاني د مشهور توریالی، غېرتی او په خپل قام او ملت مئین حافظ رحمت خان په فرمایش لیکلے شوے وو۔ او د دے نوی کتاب مؤلف په ځان په خپله خان موصوف دے۔ دویم دا چه دغه نوموړے کتاب (تواریخ حافظ رحمت خاني) مونږ د یو دروند او مخیر پښتون خان روشن خان د نوی کلی (مردان) په مالی امداد چاپ کړے وو۔ او دا کتاب هم د هغهٔ د علم پرورئ او خپل تاریخ سره د دلچسپئ او د دے د قدردانئ یو تازه اقدام دے!۔

د یو قام د تاریخ د اهمیت په حقله ډیر څه وئیلے کېدے شی۔ خو دلته به زهٔ په ډیرو لنډو ګنډو الفاظو کښې داسے ووایم چه د یو قام د ترقئ او پرمخ تګ د پاره د هر څه نه اول د خپل پخوانی تاریخ نه ځان خبرول ډیر ضروری وی۔ د خپل ماضی (تاریخ)

په رڼرا کښې قاموونه ځان له خپل مستقبل جوړوی! ــــ د پښتنو د تاریخ په حقله تر اوسه دا خیال وو. چه پښتنو په خپله دے طرفته توجه نۀ ده کړے. ځکه نو تاریخ ئے د ماضی په تیرو کښې ورک دے. او چه څه لږ ډیر تاریخونه ئے لیکلی شوی دی هغه یا خو د مغلو درباریانو یا نورو داسے قسم خلقو لیکلی دی چه که پښتنو سره ئے میرځی او دشمنی نۀ وه نو همدردی ئے هم ورسره نۀ ده. او هم دغه وجه ده چه د پښتنو چه کوم حالات پردو خلقو لیکلی دی په هغے کښے دغو لیکونکو یا مؤرخینو د تاریخ حق نۀ دے ادا کړے ــــ خو د ځینو هغو تاریخی قلمی نسخو د دریافت او په لاس راتلو نه پس، د پښتنو صحیح او مستند حالات لګیا دی ورو ورو د حقائقو رڼرا ته راووزی ــــ "تواریخ حافظ رحمت خانی"، غندے کتابونه په دے لړ کښے د منګ میل حیثیت لری.

دا زیر نظر کتاب، لکه چه د نوم نه ئے څرګنده ده. د پښتنو د اصل نسل سره تعلق لری. د دے بنیاد هم په ځنو نورو تاریخی کتابونو، لکه واخلے تاریخ خان جهانی، تاریخ شیر شاهی، تذکرةالابرار وغیره دے. ځکه نو په دے کښے هم شروع د "قیس عبدالرشید"، نه شوے ده. که دا نظریه یا روایت، څنګه چه ځنے نوی محققین وائی، محل نظر وګرځولے شی. نو هم د دے کتاب اهمیت نۀ کمیږی. ځکه چه په دے کښے تشے دغه پخوانئ شجرے نۀ دی ورکړی شوی. بلکه په دے کښے، په دے عقیده چه پښتانۀ بنی اسرائیل دی، دغه تاریخ د بنی اسرائیل د زمانے

راسے راخیستے شوے دے۔ او د مؤلف تر وختہ پورے را رسولے شوے دے۔ خو ورسرہ ورسرہ ځنے توضیحات هم زیات کړے شوی دی ۔

زما خپل خیال دا دے چه د پښتنو د اصل نسل په حقله چه تر اوسه کوم خیالات او نظرئے څرګندے کړے شوی دی ۔ په دے کښے یوه هم حتمی او حرف آخر نۀ ده ۔ ځکه چه په دے کښے په هره یوه نظریه کښے د ګوتے کېښودو ځائے شته ۔ د مثال په څېر ، دا خبره چه پښتانۀ د پېړو پېړو راسے ځان ته خپله ولے بنی اسرائیل وائی؟ــــ په پښتنو کښے، او بیا خاص طور په ځنو مخصوصو قبیلو کښے د بنی اسرائیلو د دود دستور رسم و رواج ، تر دا چه د ځنو علاقو ، کلو نومونه ولے یو شان دی ؟۔ بل خوا د دوئی ژبه بے د څه شک شبهے آریائی ژبه ده ! ۔ اګر چه د قاموںو د علم او د ژب پوهنے (لسانیاتو) له رویه ضروری نۀ ده چه د یو قوم ژبه او د دغے قوم نسل دِ یو بل سره تړلے وی۔ ځکه نو دا ضروری نۀ ده چه که د دے قام ژبه آریائی ده نو دا قام دِ هم هرو مرو آریه نسل سره تعلق ولری۔ خو بل خوا ، په دے ژبه کښے هم، یوه خبره په حلوا کښے ازغے ازغے کېږی هغه دا چه که دا قام آریه نۀ دے۔ او د قاموںو بلے ډلے (سامی) سره تعلق لری نو دومره لوئے قام په دے نوی اختیار کړی ژبه کښے دومره قدرے اغیزه هم نۀ ده کړے چه، په سوؤنو نۀ سهی، په شلګونو الفاظ ئے د خپلے پخوانئ ژبے (عبرانی وغېره) (آن که لږ څه په بدل شکل کښے وی) په خپل ځائے ساتلے

وے۔ دا او داسے قسم ځنے نورے ډیرے اهمے نکتے شته چه د
پښتنو تاریخ لیکونکی ته وردوځاره کیږی او د دوئ د حل کولو
د کوشش په لړ کښے به هغۀ ته د هر قسم تاریخی کتابونو، آثارو،
د ژبے تاریخ، د ژبے د پخوانی الفاظو په حقله د تحقیق، څیړنے،
مقابلے او د موازنے وغیره ضرورت پیښیږی۔ ښکاره ده چه دا یو ډیر
اوږد ګران او د ګران کار دے۔ دے د پاره ځان له یو جدا
پراجیکټ پکار دے۔ په حاضرو حالاتو کښے زمونږ دا خواهش دے
چه مونږ داسے قسم نادر او نایابه کتابونه تر چا په اور سوؤ او په
پښتو ژبے او په پښتون قام مئینو عالمانو او محققینو ته وړاندے کړو
مونږ به کم از کم په دے موجوده حالاتو کښے د دے زیر نظر
کتاب د وړاندے کولو جوګه شوی نۀ وو۔ که چرے د ځان
روشن خان د خپل تاریخ سره دلچسپی او مینے مونږ سره لاس نۀ وے
کړے۔ ځکه زۀ د دے مخیر پښتون خان ډیره ډیره مننه کوم۔
خدائے پاک دِ زمونږ نورو شته منو ورونړو له هم توفیق ورکړی
چه هغوئ د قام او ملت داسے خدمت د پاره را وړاندے شی۔

د اصل کتاب په حقله دا خبره په ګوته کول ضروری ګنړم
چه د دے قلمی کتاب مائکروفلم مونږ د لندن د مشهور برټش
میوزیم د کتب خانے نه راغوښتے وو چه په فارسئ کښے وو۔ دا
ښاغلی محمد نواز طائر په ښکلی سپیځلے پښتو کښے ترجمه کړے دے
او مونږ دا کتاب په داسے طریقه چاپ کړے دے۔ چه یو مخ ته
د فارسئ اصل دے او مخامخ ورته پښتو ترجمه ـــــــ چه د فارسئ

لوستونکے ترجمے ته ، او د ترجمے لوستونکے اصل متن ته په آسانه آوریدے را آوریدے شی۔ بله دا چه قلمی نسخه کښے څه برخه داسے هم ده چه تاریخ سره ئے تعلق نشته۔ او خالص مذهبی رنګ لری او هغه هم د یوے خاصے عقیدے خلقو نمایندګی کوی۔ څکه نو د نورو عقیدو مسلمانانو زړه پرے بدیدے شی - په دے وجه مونږ دا برخه ، د خپلو اصولو تر لاندے ، چه اکیډیمی به سیاسیاتو او متنازعه فیه مذهبی مسئلو سره هیڅ تعلق نه لری ، په دے کتاب کښے نه ده شامله کړے! -

په آخر کښے زۀ د چاپه خانے (حمیدیه پریس) د مالک سید محمد احمد او خاص طور سره د دے پریس د کمپوزیټر حاجی ارباب عبدالکریم او د خپل پروف ریډر ښاغلی سیف الرحمان سید ډیره مننه کوم چه د دے کتاب د چاپ په لړ کښے ئے ښه تعاون او ملګرتیا کړے ده۔ او دا کتاب د چاپه خانو د عام روایت په مقابله کښے ډیر زر تر چاپه رسیدلے دے ! ۔

سید خیال بخاری
ډائرکټر د پښتو اکیډیمئ
پیښور یونیورسټی۔

اګست ۱۹۷۳ء

بسم الله الرحمن الرحيم

# خلاصة الانساب

پښتانهٔ د تاریخ په هر دور کښې د څه مخصوصو روایاتو پابند پاتې شوی دی۔ په دې روایاتو کښې یو اهم خصوصیت په تپو او قبیلو کښې د دوئی ښکاره تقسیم دے چه عملاً د هرے کورنئ او هر خاندان صحیح پېژندنه ترے کېږی۔ او د الله تعالیٰ دا ارشاد چه وجعلنا کم شعوباً و قبائله لتعارفوا لکه چه د دوئ په قبیلو خېلو او خېلخانو دلالت کوی۔ دوئ ټول که په خپل وطن کښې وی او که په پردېس کښې خپل ځانونه په دغه قبیلوی نسبتونو متعارف کوی۔ دوئ ته د خپلو لویو قبیلو، سترو ګوندونو، وړو تپو او بیلو بیلو خېلخانو نومونه یادوی او د خپلے قاموالئ او حسب نسب نه فرداً فرداً خبروی۔ دغه وجه ده چه که یو پښتون په پردېس کښې په ناشنایئ کښې په چا همذات پېښ شی نو د ټولو نه اګاهو ورسره د پښتون ولئ په تړون پېژندګلو پېدا کوی۔ بیا د یو بل د قبیلے، خېل او تبردارئ نه ځان خبروی او دغه رنګ دوئ دا غواړی چه په خپلو کښې د نسبی نزدیکت پېوند اوموبی۔

د مغلیه سلطنت په ټول دور کښې او د دے نه هم لا پخوا
چه پښتانهٔ کله هم د شاهي دربارونو نه د خلعتونو موندو حقدار شوی
وو نو دغه خلعتونه به دوئ ته ''علیٰ حسب درجات،،* ورکېدے
شول۔ او د دوئ نومونه ''په موجب د سیاهی او د یادداشت په دفتر
کښې اسامی وار کښلی وو،،** همدغه دستور په برطانوی دور حکومت
کښې او بیا وروستو هم لا تر دے وخته د ډیورنډ د لیکے په دواړه
اړخه جاري دے۔ د دوئ دا ټاکلے درجې به په خپله قبیله، کوندئ،
تپه او خېل کښې د مشرئ په تابین حسابېدے۔ او هم د دغے له
مخه به هر سړی ته د خپلے عزیزولئ، تپے او قبیلے په حقله پوره پوره
معلومات حاصل وو۔ او هم به ئے په دے کښې خپل مناسب ځائے
او مقام پېژندو۔ له دے کبله د دوئ د پاره دا لازمه وه چه په
دوئ کښې هر سړے د سترے تر حده د خپلو نسب نامو نه پوره
پوره خبر وی او دا ورته معلومه وی چه د دوئ خېل په کوم ځائے
کښې د کومے تپے سره یوکېږی او د دوئ تپه په کوم ځائے کښې د
نورو تپو نه بیلېږی۔ دغه رنګ دوئ ټول د خېلونو او تپو په تړون
او بیلتون باندے خبردار وی۔ او د خپل حسب نسب چه دوئ ورته
په خپله اصطلاح کښې ''کنهه زنهه،، وائی په حقله ورته ټول
معلومات حاصل وی۔ په ستره کښې دوئ ټول په دریو غټو څانګو

*تواریخ حافظ رحمت خانی صفحه ۱۷
**تواریخ حافظ رحمت خانی صفحه ۸۸

کښیږي تقسیم دی. خوشحال بابا وائی :

پښتون په اصل سړبني دے یا غورغښتے دے یا بیټني دے
لودی غلجي دے د بیټ د لوریه په سړبن پورے بیاکرلانړے دے

د پښتنو د نسب نامو په حقله ټول په دے خبره متفق دی ـ چه سړبن غورغښت او بیټن د دوئ د انسابو د سترے درے غټ ښاخونه دی. د اخون درویزه د تذکرة‌الابرار والاشرار نه راواخله د جدید و مستشرقینو او محققینو تر وخته ټول په دے خبره متفق دی.

د دے دریو غټو برخو د مورث اعلیٰ قیس عبدالرشید د وجود تاریخی حېثیت که هر څو شکمن دے خو د هغهٔ د اساطیری مقام نه انکار نهٔ شی کیدے. په دے چه که عام پښتانهٔ ځان ته د سبلمے د خالد بابا اولاد اووائی یا ټوله خټک نامه ځان د خوشحال خان نمسی اوګنړی نو دا دعوه نهٔ خو صحیح ده او نهٔ بے ځایه ـ صحیح په دے نهٔ ده چه اولاد نسل دے چه پوړئ په پوړئ د شجرے مطابق تر خپل غور نیکه رسی او بغیر د دغے ترون نه د اولاد حقیقت نهٔ شی ثابتیدے. خو بے ځایه په دے نهٔ ده چه هم هغه یو شخصیت داسے دے چه امانی نسل یا بوه امانی قبیله د دهٔ نوم د خپل نسل د درناوی او سر لوړئ باعث ګنړی. او ځکه په دهٔ باندے ویاړی او فخر پرے کوی ـ هم د دے مینے له کبله ورته د نیکه نسبت کوی ـ

د قېس عبدالرشید شخصي کارنامې اګر چه د تاریخ له رویه نۀ دي ثابتې او نۀ ئې د زمانې او وخت صحیح تعین کېدے شي، خو بیا هم قیاساً دا ویلے شو چه یا خو د دۀ زمانه هغه لرغونی دور ته ورته ده کله چه پښتانۀ نوی نوی د سلېمان غرونو په خنګ کښے اباد شول او لکه چه د روایاتو نه دا څرګنده ده چه پښتنو قبائیلو چه به هر چرته هم هجرت یا کډه کوله نو د یو سردار په مشرئ کښے به روانېدل۔ چه د ټولو نه ورستے مثال ئې د ملک احمد رحمه دے چا چه یوسفزی قبائیل د الغ بېګ مغل د دست اندازئ نه خلاص کړل او د پېښور، سمے او سوات په ورشوګانو ئې اباد کړل، ممکنه ده چه په تېر کوم دور کښے د قېس عبدالرشید په مشرئ کښے هم داسے څه واقعات پېښ شوی وی۔ او د هغے له مخه پښتانۀ هغے سیمے ته راغلي او اباد شوی وی چه د هندوکش د سیمے کافر ورسره په ګاونډ کښے وو۔ او هرکله چه دغه کافرو به خپل یو دېوتا ته ګېش وے نو ممکنه ده چه هم دوئ د پښتنو دغے نامتو سردار ته د ګېش نوم ورکړے وی۔ چه بیا دغه نوم په ورستئ کښے معرب کړے شوے وی۔ او د ګېش نه کېس او بیا قېس ساز شوے وی۔ د دے خبرے د تصدیق د پاره د پښتنو په مذکوره درېو لویو قبیلو کښے به د بېټان یا بېټن مثال واخلو۔ د هندوکش د سیمے پاتے شونی کافر چه اوس هم په چترال کښے په برېر، بهمبوریت او رمبور په درو کښے اوسی دا قبائل لا نن هم خپل مذهبی پېشوا او د قبیلے سردار ته بېټن یا بېټان وائی۔ کېدے شي چه هم دغه بېټن یا بېټان لفظ چه د عربي

د ''شیخ،، او ترکی ژبې د ''خان،، مترادف دے په هندی پراکرت ژبو کښې پټهان شوے وی۔ او دغه شان رو رو د دوئی د یو نیکه نوم ''کرش یا قیس مشهور شوے وی او په ستره کښې یو ته بیټان، بیټن یا پټهان ویلے شوے وی۔ بهر حال د قیس عبدالرشید د وجود او شخصیت په حقله تولے خبرے محض په حدثیاتو مبنی دی ځکه ئے په وثوق او حقیقی دلائلو ثابتول یو لا حاصل کوشش دے۔

دا کتاب چه نوم ئے خلاصة‌الانساب دے نواب حافظ رحمت خان شهید په بر صغیر کښې د مېشته شوؤ پښتنو د استفادے په غرض لیکلے وو د هغهٔ دا خیال وو چه ډیر روهیلی پښتانهٔ چه هند ته راشی او دلته اباد شی نو پیړئ نیمه پس ترے خپل اصل نسل او ذات زریات هېر شی۔ او دا ورته نهٔ وی معلوم چه زهٔ اصلاً د پښتنو د کوم خپل، کومے تپے او کومے قبیلے نه یم او هغوئی دا وخت په کوم ځائے کښې اباد او مېشته دی۔

پښتانهٔ قبائیل نن هم کم و بیش په هغه علاقو پراتهٔ دی په کومو باندے چه دوئی د دے نامتو روهیلی سردار په زمانه کښې اباد وو ۔ د دوئی هره قبیله، هره کونډئی او تپه او هر یو خېل یو تر بله د عزیزولئی په تار ترلی دی او د هغے په مناسبت د یو بل مره غم ښادی ساتی۔ په پښتونخوا کښې عملاً هر یو فرد د خپلے خېلخانے او خپل قام قبیلے نه خبر وی ۔ په دے سبب د خپلو نسب نامو په باب کښې د سترے اِو کمکئی په حقله د دوئی معلومات

هم عملاً صحیح وی۔ خو د خپلو مکملو شجرو او نسب‌نامو د یادداشتونو ساتلو رواج اوس ډېر نۀ دے پاتے۔ بیا هم د دوئ په اکثرو قبیلو کښے څنے داسے خلق موجود دی چه هغوئ ته د خپلے قبیلے شجره د سترے تر حده نام په نام یاده وی۔ او د هغوئ د یادداشتونو په سبب د نورو خلقو معلومات هم زیاتیږی۔

د خلاصة‌الانساب مؤلف د کتاب په سر مقاله کښے د نسب‌نامو په اهمیت ډېر زور ورکړے دے او دا ئے واضحه کړے ده چه د دنیا په انسانی نسلونو کښے عرب او پښتانۀ دوه داسے نسلونه دی چه خپلے صحیح نسب نامے ئے برقرارے ساتلے دی او د خپل نسل د نجابت او شرافت د سوچه ساتلو د پاره ئے تل په دے روایاتو عمل کړے دے۔ او د دے روایاتو د ژوندی ساتلو په غرض د دے کتاب مولف د هندی پښتنو د استفادے د پاره دا کتاب تالیف کړے دے۔

د یوسفزو نامتو مشر ښاغلی روشن خان چا چه د دے کتاب د چاپ کولو د پاره پښتو اکېډیمئ ته مالی امداد ورکړے دے۔ هغوئ چه څه وخت د کتاب په مسوده سرسری نظر واچوؤ نو د کتاب په متن کښے ئے د څېنو خبرو په حقله خپل معلومات مونږ ته راکړل۔ مناسب دی چه د کتاب لوستونکی د دے د لوستو نه اګاهو دغه خبرو ته خیال اوکړی۔

صفحه ۳۱ :- امام ابو حنیفه (رض) چه نوم ئے نعمان وو۔ دے خوے د ثابت، خوے د مهی وو ، وائی چه د مهی خپلو یوه قبیله اوس هم د قندهار نه په ځلوېښت میله کښے پرته ده۔ د امام صاحب نیکه زوتے د امیر کابل شاه امداد له راغلے وو او د کابل سره نزدے په اسبار نومے ځائے کښے د عربو مسلمانانو سره په یو جنګ کښے ګرفتار شوے وو او کوفے ته بوتلے شوے وو۔ هلته د مال غنیمت په وېش کښے دے د بنو تمیم قبیلے په حصه کښے راغے او مسلمان شو۔ دغه شان دے د کوفے په عربو کښے ورګډ شو۔ عرب مورخین زوتی بن ماهی ته کابلے هم وائی۔

صفحه ۸۳ :- د ابن بطوطه د بیان مطابق د علاؤالدین د نوم سره د غوری نسبت د اردن سیند د غاړے د غور * نومے علاقے د مخه وو۔ هرکله چه پښتانۀ د هغه ځایه راغلی وو او دلته په افغانستان (خراسان) کښے ئے هم د خپل استوګن ځائے یو نوم غور ایښلے وو نو په دے سبب به په دغه سیمه مېشته پښتنو ته غوریان ویلے شو ځکه دے پښتون سلطان ته د تاریخ په کتابونو کښے غوری ویلے شي۔ د پښتونخوا په سیمه د ابادو ډېرو ښاریو، کلو او ځایونو، سیندونو نومونه د شام، فلسطین او شرق اردن د زړو ښاریو کلو او ځایونو، سیندونو په نومونو کېښودے شوی دی او لا تر اوسه هم په هغے نوم اباد او موجود دی۔

---

* The Travels of Ibn Battuta vol : I Page 70

صفحه ۱۱۳ :- د رزړ ځاوز ځامن وو- د ځاورم ځوی نوم ئے خوزے وو- هغه خپل پلار د میراثے نه محروم کړے وو- او ملک اکو چه د دهٔ ورور وو خوزی ته په خپله حصه کښے برخه ورکړے وه- د خوزی اولاد اوس هم په اسمعیله کلی کښے اباد دے-

صفحه ۱۱۵ :- پنجپاؤ او مخوزی په اصل کښے نسوزی دی چه سهواً په بدل ځائے کښے راغلی دی-

صفحه ۱۱۷ :- د ملیزی په حقله ورکړے شوے نوټ صحیح نهٔ دے او اصل متن صحیح دے- ځکه چه په ستره کښے یو بل ملے هم موجود دے- وړومبے ملے د اکو ورور دے چه د نورو وروڼو نومونه ئے موسٰی، عیسٰی او اورسا دی- دویم ملے د اکو د ځوی خواجو ځوے دے چه اولاد ته ئے ملےزی وائی چه په شجره کښے ئے سلطان خېل، نصرت دین خېل او اوسا خېل او د هغوئی لاندینی خېلونه زېاونه دی دوئی تول په دیر کښے ابلد دی- دولتزی، چغرزی او نوریزی د ړومبی ملے اولاد دے دوئی اوس هم په بنېر پراتهٔ دی *-

پښتو اکېډیمی د خلاصةالانساب مائیکروفلم د برټش میوزیم نه راغوښتے وو، د کتاب په ړومبئ صفحه د کتب خانے اندراجات

* یوسفزی افغان صفحه ۳۷۵، ۳۷٦-

دی چه د ډیپارټمنټ، کېټېلاگ او آرډر نمبرونه پرے درج دی۔ خو
د ټائیټل په ځائے رحمت خان لیک دے۔ د کوم ځائے نه چه دا
کتاب حاصل کړے شوے دے د هغے ذکر پکښے نیشته۔ په ورستی
مخ ئے په انګریزئی کښے دا عبارت لیکلے دے۔

Kulasatul Ansab
An Historical Relation of the
Rohila Afghans written by the late
*Hafiz Rahmat Khan*

Sd/-
Seal 1796

د کتاب اصل متن په فارسئ کښے دے چه د پښتنو لوستونکو
د اسانتیا د پاره پښتو کړے شو۔ او د اصل متن سره صفحه په صفحه
بالمقابل راوستے شو۔ د کتاب په بیان او موضوع کښے د هیڅ قسمه
کمی بېشی نۀ ده کړے شوے البته یوه بیله مقاله چه د کتاب د
موضوع سره ئے څه سمون نۀ خوړو هغه ترے بېخی حذف کړے
شوے ده۔ نور کتاب په خپل اصلی شکل کښے د لوستونکو د وړاندے
دے۔ خدائے دِ اوکړی چه پښتانۀ لوستونکی ترے پوره پوره
استفاده اوکړے شی۔

د خلاصةالانساب د مؤلف حافظ رحمت خان روهیلی مختصر
خاندانی حالات د دے کتاب په روښئ حصه کښے درج دی۔ خو

مفصله سوانح عمری ئې د ”گلستان رحمت په نوم لیکلے شوے ده۔ دا د هغهٔ ځوی نواب مستجاب خان لیکلے ده۔ په ۱۸۱۴ء کښې چارلس ایلیټ نومے یو انگریز د دے کتاب مختصره انگریزی ترجمه اوکړه۔ او ټاکر اینډ کمپنی د کلکتے نه په ۱۸۳۴ء کښې شایع کړے ده۔ د ”گلستان رحمت پښتو ترجمه (ناچاپ) مولوی محمد امین د رخړو اشنغر کړے ده۔ د حافظ شهید یوه سوانح عمری د ”گل رحمت په نوم د هغهٔ یو نمسی لیکلے ده۔

د دے روهیله سردار نورے ډیرے سوانح لیکلی شوی دی۔ چه یوه پکښې د ”حیات حافظ رحمت خان،، په نوم په اردو ژبه کښې هم ده۔ دا کتاب د سید الطاف علی بریلوی تالیف دے او اکیډیمی آف ایجوکیشنل ریسرچ د کراچئ چاپ کړے دے۔

د پښتو ژبے ستر شاعر کاظم خان شیدا چه په رامپور کښې اباد شوے وو د حافظ رحمت خان مرحوم په مداحانو کښې وو۔ حافظ شهید د صفرے په میاشت کښې ۱۱۸۸ھ مطابق ۲۳ اپریل ۱۷۷۴ء شهید کړے شوے وو۔ ښاغلے بریلوی د خان شهید د شهادت په حقله لیکی چه په دے زمانه چه د لویو خلقو د وفات په غم څومره غوغا او ماتم وی د دے نه اندازه کیدے شی چه د حافظالملک غوندے عظیمے هستئ په شهادت به څومره لوئے ماتمونه شوی وی۔ چنانچه د دے غم د اظهار په غرض ځینو نومورو شاعرانو د مرحوم د تاریخ وفات بے شماره قطعے لیکلی دی چه په کتابونو

او د خلقو په حافظو کښې يادے پاتے دی۔ په دوئ کښې په عربی، فارسی، پښتو، اردو څلورو وارو ژبو کښې د هغهٔ تاريخ وفات راويستے شوے دے ۔ د پښتو فارسئ يوه قطعه چه بو نامعلومه شاعر ويلے ده پکښې دا ده ۔

آن حافظ جان حافظ دين بعد شهادت چون رفت سوئے خلد برين بهر تماشه
رضوان پئے تعظيم زجاجت وهمی گفت درمعنی تاريخ که "خانه دلےر اشه"
۱۱۸۸ھ

د کاظم خان شېدا قطعه څه دارنګے ده :-

په مېدان چه حافظ پر بوت شهيد شو کشنده ئے په رحات کښې شو عجول
استفسار که د تاريخ کاندی څوک وايه چه يو کال وو د قاتل او د مقتول
۱۱۸۸ھ

د حافظ رحمت خان شهيد درويشت اولاده وو په دوئ کښې څوارلس ځامن او نهه لونړه وے، په اولاد کښې ئے د لوړے درجے اديبان، شاعران او عالمان پيدا شوی دی ۔ حقيقت خو دا دے چه په روهيلکنډ او فرخ اباد کښې چه د پښتو ژبے او ادب څه خدمت شوے دے دغه ټول د خان موصوف او د هغهٔ د اولاد د برکته وو۔ د پښتو ژبے دوه ډکشنرئ رياض المحبت او عجائب اللغات د هغهٔ دوؤ ځامنو نواب محبت خان او نواب اَلله يار خان ليکلی دی۔ د پښتنو يو لوئے مؤرخ پير معظم شاه د خان موصوف د کتب خانے لائبرېرين وو۔ د هغهٔ په ځامنو کښې نواب ذولفقار خان، نواب مستجاب خان، نواب

محمد اکبر خان او نیاز احمد خان هوش لوئے اهل قلم او صاحب دیوان شـاعران تېر شـوي دي ، د نواب ذولفقار خان ځامن نواب علي محمد خان چه په ګلن میان مشهور دے او نواب احمد یار خان ښـۀ صاحب طرز ادیبان او شاعران وو۔ د دوئ لیکلي په پښتو او اردو ژبو کښې ډېر مطبوعه او غېر مطبوعه کتابونه موجود دي۔

د خان شهید د ټولو ځامنو اولاد خپلے نسب نامے په ډېر اهتمام سره محفوظے ساتلے دي او په هند کښې د روهیلکنډ په سیمه ئے د پښتونولئ دا قدیمي روایت ژوندے او برقرار ساتلے دے۔

محمد نواز طائر

۱۱-۷-۱۹۷۳



رَبِّ يَسِّر بِسمِ اللهِ الرحمٰنِ الرحيمِ و تمِّمْ بالخير

الحمد لله رب العالمين والصلوة والسلام على رسوله محمد و آله و اصحابه اجمعين حمد بیحد مر خالقی را که جمیع مکونات راجهت اظهار ربوبیت خویش از ظلمت عدم بدر آورد و تمامی کون و مکانرا جهت معرفت خود ابداع نموده ـ کما جاء فی الحدیث القدسی كُنْتُ كَنْزًا مَخْفِيًا فَاَحْبَبْتُ اَنْ اُعْرَفَ فَخَلَقْتُ الْخَلْقَ و ایضاً کما قال الشّاعر بطریق السّوال ـ ''نظم،،

به صحرائی عدم خوش خفته بودم
مرا بانیستئی خویش خوش بود
ز خواب خوش مرا بیدار کردی
نمیدانم ترا زین چیست مقصود

جواب مقدر من جانب الله تعالی: ''نظم،،

به صحرائی عدم خوش خفته بودی
ترا بانیستئی خویش خوش بود
ز بهر معرفت بیدار کردم
یقین میدان همین بود است مقصود

ثنای اول : و ثنا ست مرآن خدایرا که از جمیع مخلوقات جن و انس را برای عبادت خویش مختص گردانید ـ قال الله تعالی : رَبُّ السَّمٰوٰاتِ

رَبِّ یَسِّر    بسم الله الرحمٰن الرحیم    وتمِّمْ بالخیر

الحمد لله رب العالمین والصلوة والسلام علی رسوله محمد وآله و اصحابه اجمعین - پاکی ده خالق د کون و مکان لره چه ټول جهان ئے د خپل ربوبیت د اظهار د پاره د عدم د تیارے نه را بهر کړے دے او کون و مکان ئےد خپل معرفت په خاطر پیدا کړے دے - لکه چه حدیث قدسی دے - ((وُم زهٔ یوه خزانه پټه ، پس خوښه مے کړه چه اوپیژندلے (ښکاره) شم پس پیدا مے کړهٔ مخلوق)) - او لکه چه یو شاعر په سوالیه انداز کښے وائی :

به صحرائی عدم خوش خفته بودم
مرا بانیستئی خویش خوش بود
ز خواب خوش مرا بیدار کردی
نمی دانم ترا زین چیست مقصود

او د مقدر جواب ورته د الله تعالی د لوری دا دے چه :

به صحرائی عدم خوش خفته بودی
ترا بانیستئی خویش خوش بود
ز بهر معرفت بیدار کردم
یقین میدان همین بوداست مقصود

رومبئی ثنا : او ثنا ده هغے خدائے تعالی لره چه په واړه مخلوقا کښے ئے جن وانس د خپل عبادت د پاره مختص کړی دی۔ الله تعالی فرما

وَ رَبُّ الْاَرْضِ رَبُّ الْعَالَمِیْن وَلَهُ الْکِبْرِیَآءُ فِیْ السَّمٰوَاتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ۰

درود سعادت ورود بران برگزیده معبود باد که بهترین آدمیانست

بیت

گرانمایه تر تاج آزادگان گرامی تر از آدمی زادگان

و سبب آفرینش عالمیانست زیرا که خلعت لولاک خاص وی را پوشانیده شده است کما جاء فی الحدیث القدسی لَوْلَاکَ لَمَا خَلَقْتُ الْاَفْلَاکَ چنانچه ابیات افغانی :

د حق ځو پرے شفقت دے چه لولاک د دهٔ خلعت دے
دے سبب د کل خلقت دے پهر ځائے حق حرمت دے
پرے دِ وائی درست عالم
صلی الله علیه و سلم

بیت

بود رخ شمع نبوت فروز آب ندیده گل آدم هنوز

و عرش و کرسی و زمین و آسمان و جمیع ما فیها ثناخوان آن حضرت اند ـ چنانچه ابیات افغانی :

عرش کرسی مزکه آسمان د دهٔ کل دی ثنا خوان
نظر کره د دهٔ پشان چه پرے کروهی عرش لرزان
د پائیزاره شه مستحکم
صلی الله علیه و سلم

((پېدا کوُنکے (مُنتظم) د آسمانونو دے او پېدا کوُنکے دے د زمکے او پېدا کوُنکے (پالونکے) دے د ټول مخلوق - او دهٔ (الله تعالیٰ) لره ده لوئی په آسمانونو او زمکه کښې او هم دے زورور او د حکمت خاوند دے)) - او درود دِ وی په هغه پاکه هستئی چه په واړه انسانانو کښې افضل او بهتر دے - بیت:

گران مایه تر تاجِ آزادگان    گرامی تر از آدمی زادگان

او کل عالم ئے د مخه پېدا شوے دے ځکه چه د لولاک خلعت خاص دهٔته ورکړے شوے دے او لکه چه په حدیث قدسی کښې راغلی دی - ((که چرے (مقصود مے) نهٔ وے تهٔ (اے محمد صلعم!) نو بالکل به مانهٔ وُو پېدا کړی آسمانونه (کائنات))) - چنانچه ابیات افغانی:

د حق سوړے شفقت دے    چه لولاک د دهٔ خلعت دے
دے سبب د کل خلقت دے    په هر ځائے ئے حق حرمت دے

پرے دِ وائی درست عالم
صلی الله علیه و سلم

بیت:

بود رخ شمع نبوت فروز    آب ندیده گلِ آدم هنوز

او عرش او کرسی او زمکه او اسمانونه او څه چه په دوئی کښې موجود دی ټول د پاک حضرت صلعم ثنا وائی- لکه چه شاعر وائی:

عرش کرسی مزکه اسمان    د دهٔ کل دی ثنا خوان
نظر کړه د دهٔ په شان    چه پرے کروهی عرش لړزان

پائېزار شه مستحکم
صلی الله علیه و سلم

که نبیان که مرسلان دی ... د دهٔ واره نائبان دی
دے بادشاه دوئی امیران دی ... که ملک که انس که جان دی

د دهٔ دی حشم خدم
صلی الله علیه و سلم

و نیز در حدیث قدسی آمده لَوْلَاکَ لَمَا اَظْهَرْتُ الرَّبُوبِیَّةَ

و ایضاً جاء فی الحدیث القدسی اَنَا وَ اَنْتَ وَمَاسوی ذٰلِکَ خَلَقْتُهُ

لِاَجْلِکَ وَهُوَ قَالَ یَا رَبِّ اَنْتَ وَمَا اَنَا وَمَا سِوٰی ذٰلِکَ تَرَکْتُهُ

لِاَجْلِکَ ۔ چنانچه اَوَّلاً نور محمدی بظهور آمده بعد ازان ایجاد

عالم شده از نور او چنانچه شاعری در وصف آن جناب صلی الله

علیه و سلم گفته است : ابیات

چراغی که تا او نیفروخت نور ... ز چشم جهان روشنی بود دور
چراغی که پرواز بینش بدوست ... فروغ همه آفرینش بدوست

قال علیه السلام اَوَّلُ مَا خَلَقَ اللّٰهُ نُوْرِیْ و ایضاً قال علیه السلام

اَلْخَلْقُ مِنْ نُوْرِیْ، و ظلام ظلمت کفر رخت رحلت بربسته از پرتو

ظهور او ۔

ابیات

چو صیتش در افواه دنیا فتاد ... تزلزل در ایوان کسری فتاد
بلا قامت لات بشکست خود ... به اعزاز دین آب عزی ببرد
نه از لات و عزی برآورد گرد ... که توریت و انجیل منسوخ کرد

کہ نبیان کہ مرسلان دی د دۀ واړه نائبان دی
دے بادشاه دوئی امیران دی کہ ساک کہ انس و جان دی

د دۀ دی حشم خدم
صلی اللہ علیه و سلم

او په حدیث قدسی کښې دا هم راغلی دی چه ((کہ چرے نۀ وے تۀ (ستا پیدائش مقصد) نو نۀ به وه ظاهره کړی ما خپله خدائی))
او یو بل حدیث قدسی دے چه ((زۀ (الله) او تۀ (محمد) او بغیر د دے نه (ټول کائنات) مے پیدا کړیدے ستا د پاره۔ او دۀ (محمد صلعم) ویلی دی . اے ربه! یو تۀ ئے او زۀ نۀ یم۔ او بغیر د دے نه هر څه پرېښېدی ما ستا د پاره))۔ چنانچه د ټولو نه اګاهو د محمد صلی‌الله علیه و سلم نور ظاهر شو پس له هغې د هغۀ د نوره دا نور عالم په وجود کښې راغې۔ لکه چه یو شاعر د دے پاک ذات صلی الله علیه وسلم په شان کښې ویلی دی چه :

چراغے که تا اونیفروخت نور ز چشم جهان روشنی بود دور
چراغے که پرواز بینش بدوست فروغ همه آفرینش بدوست

فرمائیلی دی رسول کریم صلعم : ((اول په هغه څیزونو کښې چه پیدا کړیدی الله تعالیٰ نور زما دے))۔ او همدا‌شے فرمائیلی دی رسول کریم صلعم : ((ټول مخلوق زما د نوره (پیدا) دے))۔ او د کفر تیرے د هغۀ د ظهور په رڼرا ورکے شوے۔

چو صیتش در افواهِ دنیا فتاد تزلزل در ایوان کسریٰ فتاد
بلا قامت لات بشکست خود با عزاز دین آب عزیٰ ببرد
نه از لات و عزیٰ بر آورد گرد که توریت و انجیل منسوخ کرد

و تمامی اکناف و اطراف جهان بنور اسلام منور گشته از ظهور پرتو او قال وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنَ ای لِيَعْرِفُوْنَ ہ زیرا که مادامی که معرفت الہی حاصل نکند عبادت او جل و علا نخواهند کرد و آن‌معرفتی که علی العموم جمیع اشیا را حاصل است تا بآن معرفت الله تعالی را تسبیح میگویند ـ قال الله تعالی ، وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ ہ و ایضاً قال الله تعالی ، يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰاتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ آن از قبیل مخلوقیت است نه از قبیل عبودیت زیرا که خواهش الہی در پرستش خود خاص در جن و انس است چنانچه از آیت کریمه وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ ظاهرو مستفاد میگردد ـ

ثنای دوم: وثناست مرآن خدایراکه خاصه نوع انسان را از جمیع مخلوقات بخلعت خلافت مشرف ساخت قال الله تعالی اِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً و مردان خدایراکه به تشریف تکریم و تفضیل مکرم و مفضل نمود قال الله تعالی وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْ آدَمَ وَحَمَلْنَاهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنَاهُمْ مِّنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَا

او تهوله دنیا د اسلام په نور منور شوه۔ او د دغوئی د نور دظهور له مخه لکه چه ارشاد باری دے۔ ((او نهٔ دی پیدا کړی ما پیریان او بنیادم مګر له پاره د دے چه عبادت وکړی دوئی (زما) ۔ یعنی چه وپیژنی (ما) )) ۔ ځکه چه هغه څوک چه معرفت د الله تعالیٰ ئے نصیب نهٔ شی هغه د بندګئی حق نهٔ شی تر سره کولے۔ او هغه معرفت چه علی العموم هر څیز ته حاصل دے د دغے په ذریعه د الله ثنا بیانوی ۔ ((او نشته دے هیڅ څیز مګر پاکی (تسبیح) بیانوی سره د ثنا د دهٔ (الله تعالیٰ) و لیکن تاسو په تسبیح د دوئی نهٔ پوهیږئ )) ۔ او همداسے فرمائیلی دی الله تعالیٰ : ((تسبیح (پاکی) وائی خاص د الله تعالیٰ هغه (ټول) څیزونه چه په آسمانونو او زمکه کښے دی)) ۔ دا مخلوقیت له کبله دی نهٔ چه د عبودیت ۔ ځکه د الله تعالیٰ منشاء د جن و انس په بندګئی کښے ده ۔ لکه چه د دے آیت کریمه ((نهٔ به وؤ پیدا کړی ما جن اؤ انسان)) نه څرګنده ده ۔

دویمه ثنا : د الله تعالیٰ په دے ده چه چه بنی آدم ئے په خپل نور مخلوقات کښے د خلافت په خلعت مشرف کړل ۔ ارشاد باری تعالیٰ دے چه ((زهٔ مقررونکے یم په زمکه کښے خلیفه (خپل نائب) )) او خپل ځنے بندیان ئے په خپل کرم او فضل اکرم او افضل کړل۔ الله تعالیٰ فرمائی ((او په تحقیق سره ما د عزت خاوند کړیدے بنیادم او سور کړے مے دے (د سورلئی څیزونه مے ورله پیدا کړیدی) په اوچه او په ابو کښے او روزی کړی مو دی دوئی له پاک څیزونه او بهتر کړی

هُمْ علیٰ کَثِیرٍ مِمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِیلًا و آن بسبب تحمل بار امانت است که جمیع سماوات و اراضی و جبال از برداشت آن عاجز آمدی و آدمی باچنین ضعف صورت اقدام آن نموده از سر اخلاص و همت برداشت۔ بیت:

آسمان بار امانت نتوانست کشید قرعهٔ فال بنام من دیوانه زدند

قال الله تعالیٰ اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَی السَّمٰوٰاتِ وَ الْاَرْضِ وَ الْجِبَالِ فَاَبَیْنَ اَنْ یَّحْمِلْنَهَا وَ اَشْفَقْنَ مِنْهَا وَ حَمَلَهَا الْاِنْسَانُ ۔ و اکثر مفسرین بیان بار امانت را بطاعت وحدود شرع نموده و غرض ایشان ازان قبول جمیع اوامرو نواهی اجتناب است ۔ قال الله تعالیٰ مَا اٰتٰکُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَ مَا نَهٰیکُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْ و بعض مفسرین و سالکین بیان بار امانت را به عشق الٰهی کرده زیراکه در لزوم اوامر و مناهی جمیع ذوی‌العقول از جن و انس و ملک مساوی اند مگر در محبت و عشق جل و علا که نصیبه خاصه نوع انسانیست که بدان سبب در دنیا بخلافت و نبوت و لایت مشرف شده و در عقبیٰ نیز همچنین بدیدار اقدس و حور قصور و رضوان و جنان ممتاز خواهد گشت۔ بیت افغانی :-

و آسمان ته لاس د عقل نه رسیږی
دا خو عشق دے چه په عرش کرسیٔ قدم ږدی

مو دی دوئی په خپل نور مخلوق باندے په ډیرے بهترئی سره )) ـ
او په دغے سبب ئے د خپل امانت بار چه زمکے اسمانونو او غرونو
ئے د پورته کولو نه عاجزی ښکاره کړے وه ـ او بنیادم سره د
خپلے کـزورتیا د خپل همت او اخلاص له مخه د دے پورته کول
قبول کړل : بیت

آسمان بار امانت نتوانست کشید قرعۀ فال به نام من دیوانه زدند

الله تعالیٰ فرمائی چه ((بیشکه چه موږ وړاندے کړو (خپل) امانت
اسمانونو او زمکے ته خو انکار اوکړو دوئی د پورته کولو (سرته
رسولو) د دے نه ـ او ویرېدل له (پورته کولو د) دے نه ـ او
پورته کړو دا امانت بنیادم))ـ او اکثرو مفسرینو د بار امانت تفسیر
په اطاعت او بندګئی او د شرعے په پابندئی کړے دے او د دے
مقصد د ټولو اوامرو منل او د نواهیو نه اجتناب کول دی ـ خدائے پاک
فرمائی چه ((کوم احکام چه راوړی تاسو ته (د پاره د کولو) رسول
(محمد) پس هغه واخلئ (عمل پرے اوکړئ) او کوم کارونو نه چه
منع کړی تاسو هغه، پس منع شئ تاسو ((د کولو د هغے نه)) او
څینو مفسرینو او سالکینو د بار امانت تفسیر په عشق الهی سره کړے
دے ـ ځکه په اوامرو او نواهی کښے ټول د پوهے خاوندان یعنی
جن او انس او ملک یو شان دی ـ ولے د الله تعالیٰ عشق او محبت
خالص د انسانانو په برخه دے ـ او هم د دے له کبله په دے
دنیا د خلافت، نبوت او ولایت په درجو مشرف شوے دے ـ
او په عقبیٰ کښے هم دغه رنګ د دیدار حق او د حورو او قصور
او رضوان و جنان خوشحالئ د دۀ د پاره دی ـ بیت

و اسمان تهٔ لاس د عقل نهٔ رسېږی*

دا خو عشق دے چه په عرش کرسئ قدم ږدی**

---

*په اصل نسخه کښے 'نر سیږی' دے ـ **په اصل نسخه کښے 'زدی' دے

### بیت

عاشقی را سوزو بدنامی خوشست　　عاشقانرا سوز و ناکامی خوشست

**ثنای سیوم:** ثناست مرآن خدایرا که انسانرا به حکمت کامله خویش گروه گروه و قبیله قبیله کرده برای معرفت یکی از دیگری، تا جهالت از میان ایشان مرتفع شده ممیز گردند، قال‌الله تعالیٰ یَا اَیُّهَاالنَّاسُ اِنَّا خَلَقْنَاکُمْ مِّنْ ذَکَرٍ وَّ اُنْثٰی وَجَعَلْنَاکُمْ شُعُوْبًا وَّ قَبَایِلَ لِتَعَارَفُوْا چنانچه بعضی از ایشان بشرافت سرمدی اسلام ممتاز شدند و بعضی بشقاوت ابدی کفر گرفتار گشتند۔

**ثنای چهارم:** و ثنای است مرآن خدایرا که ذریت حضرت آدم علیه‌السلام را از پشت حضرت آدم خارج نموده قال‌الله تعالیٰ وَ اِذْ اَخَذَ رَبُّکَ مِنْ بَنِیٓ آدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّیَّتَهُمْ وَ اَشْهَدَهُمْ عَلٰٓی اَنْفُسِهِمْ، و به عقل و هوش در آورد اَلَسْتُ بِرَبِّکُمْ مخاطب نمود و بتوفیق اقرار، قَالُوْا بَلٰی موفق گردانیده و بدان اقرار قَالُوْ بَلٰی بشرف ایمان مشرف ساخت قال علیه‌السلام کُلُّ مَوْلُوْدٍ یُوْلَدُ عَلٰی فِطْرَةِ الْاِسْلَامِ ثُمَّ اَبَوَاهُ یُهَوِّدَانِهِ اَوْ یُنَصِّرَانِهِ اَوْ یُمَجِّسَانِهِ، چنانچه جمهور متکلمین بدین قایل اند که اطفال کفار در جنت خواهند بود بدان اقراری که روز میثاق از ایشان سر برزده است زیرا که تا آن وقتیکه ایشان بالغ نگردند مسلمان باشند۔

بیت

عاشقی را سوز و بدنامی خوش است　　عاشقان را سوز و ناکامی خوش است

دریمه ثنا:- په دے چه خدائے تعالیٰ بنیادم په خپل حکمت کامله په ډلو ډلو او قبیلو قبیلو کښے وېشلی دی- د دے د پاره چه د یو بل پېژندۀ ورته اسان وی- او دوئی د جهالت د تیرو بهر ممیز کړے شی- الله تعالیٰ فرمائی ((اے خلقو (بنیادمو) بېشکه چه پیدا کړی یئی ما تاسو (ټول) د یو نر (آدم) او د یوے ښځے (بی بی حوا نه) او جوړے کړے ما له تاسو نه ټولی او قبیلے چه تاسو یو بل اوپېژنئی))- چنانچه په دوئی کښے ځنے په اسلام مشرف شول او ځنے د کفر په تورتم کښے پاتے شول -

څلورمه ثنا:- د رب‌العزت په دے ده چه د حضرت آدم علیه‌السلام تیر ئے د هغۀ د ښنتۍ نه اوزېږؤ- الله تعالیٰ فرمائی ((اؤ یاد کړه کوم وخت چه پیدا کړل مونږه د بنی آدمو د شا‌ګانو نه اولاد د دوئی (روحونه د دوئی) او شاهدان ئے کړل دوئی په خپلو ځانونو — چه آیا نۀ یم زۀ ستاسو رب (؟) )) او دوئی له ئے عقل او پوهه ورکړله او په الست بربکم ئے مخاطب کړل- او د قالو بلئے د اقرار توفیق ئے ورکړو- او په دغے اقرار ئے د ایمان په جوهر اونمانځل- د نبی کریم ارشاد دے ((هر یو ماشوم (بچے) چه پیدا کړے شی په طریقه (دین) د اسلام باندے، پس له هغے (چه لوئی شی) مور پلار ئے یهودی کړی او یا ئے عیسائی کړی او یا ئے مجوسی (آتش پرست بت پرست) کړی)) - چنانچه ټول متکلمین د دے قائل دی چه د کفارو ماشومان به په جنت کښے وی په دے اقرار چه د میثاق د ورځے په وعده به دوئی هم دغه وعده کړے وه او هر کله چه دوئی بلوغ ته نۀ وی رسیدلی نو دوئی مسلمانان وی-

ثنای پنجم: وثنائیست مرآن خدایرا که مایانرا بشرف نور اسلام مشرف و منور ساخت و بوفای وعدهٔ روز میثاق قالوا بلی محکم و مستحکم گردانید و به خلعت دین احمدی و ملت محمدی سرفراز فرمود که جمیع رسلِ ماضیه و اُممِ سابقه را آرزوے آن بوده که اگر مایان از جمله امت محمد آخرالزمان ے بودیم چه خوش بودی و اگر در عصرِ وی پیدا میشدیم چه نیکو بودی -

ثنای ششم: وثناء است مرآن خدایرا که مایانرا بر طریقه اهل سنت و جماعت محکم و مستحکم گردانید ----

ثنای هفتم: وثنای است مرآن خدای را که مایان را دوستدار اهل بیت و اصحاب کبار گردانیده و درجه بدرجه و مرتبه بمرتبه ایشان شناسا ساخت و در حق هیچ یکی از ایشان بغض و کینه در خاطر مایان نینداخت - پس امید که نتیجه این چنین محبت و وداد ذریعه مغفرت مایان شده وسیلهٔ نجات شود و بنعیم ابدی و بهشت جاودانی رساند -

مثنوی

خدایا بحق بنو فاطمه که بر قول ایمان کنی خاتمه

اگر دعوتم رد کنی در قبول من و دست و دامان آل رسول

اَلحَمدُ لله وَالشُّکرُ الله فلله الحمد قال الله تعالیٰ، لَقَدْ جَاءَکُمْ مِّنَ اللهِ نُورٌ و نور عبارت از وجود پر جود وهدیه سلام بران ذوالثقلین صاحبِ قاب قوسین باد که چون روز قیامت که یَوْماً یَّجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِیْباً در شان

پنځمه ثنا :- د الله تعالیٰ په دے ده چه مونږ ئے په اسلام مشرف کړی یو او د وعدے د ورځے په قالو بلے ئے محکم او مستحکم کړځولی یو - او په دین احمد صلی الله علیه وسلم او په ملت محمدی صلی الله علیه وسلم ئے سرفراز کړی یو - چه ټول ږوسبی رسولان او پخوانی اُمتونه د دے آرزومند وُو چه اے کاش که مونږه هم د محمد آخر زمان په اُمت کښے شمار وے - د هغهٔ په زمانه پیدا شوی وے نو څنګه به ښهٔ وے -

شپږمه ثنا :- د ربالعزت په دے ده چه مونږه ئے په طریقه د اهل سنت والجماعت راسخ کړی یو -

اوومه ثنا :- په دے ده چه زمونږ په زړونو کښے ئے د اهل بیتو او د اصحابهٔ کبارو مینه اچولے ده - او درجه په درجه او مرتبه په مرتبه ئے د دوئی نه واقف کړی یو او په دوئی کښے د یو کس سره بغض کینه او بدی ئے زمونږ په زړونو کښے نهٔ ده اچولے - پس امید لرو چه دا مینه او محبت زمونږ د مغفرت باعث اوګرځی او نجات مو نصیب کړی - او په ابدی نعمتونو او جاودان جنتونو کښے راته ځائے راکړی - مثنوی

خدایا بحق بنی فاطمه    که برقول ایمان کنی خاتمه
اگر دعو تم رد کنی در قبول    من و دست و داسان آل رسول

((په تحقیق سره راغلے دےتاسو ته له طرفه د الله تعالیٰ نه نور (قرآن یا محمد صلعم)) او نور عبارت دے د وجود پُرجود نه او صلوٰة سلام دِ وی په ذوالثقلین چه صاحب د قاب و قوسین دے چه په ورځ د قیامت چه ((څنګه به بچ شئ د عذاب) د هغه ورځے (قیامت) نه چه کړی به ماشومان بوډاګان (د ویرے د هغے نه))

آنروز است جمیع اولیاء و انبیاء از هیبت آنروز سر بر ندارند چنانکه در شان آنروز گفته شده ـ بیت

دران سال کز فعل پرسند قول اولوالعزم را تن بلرزد بهول

و هر کسی نفسی نفسی گوید ، قال‌الله تعالی یَوْمَ یَفِرُّالْمَرْءُ مِنْ اَخِیهِ وَ اُمِّهٖ وَ اَبِیهِ وَصَاحِبَتِهٖ وَ بَنِیهِ و اوجهت استغفار کبایر معاصی است خود امتی امتی گوید ، قال علیه‌السلام شَفَاعَتِیْ لِاَهْلِ الْکَبَائِرِ مِنْ اُمَّتِیْ و شفاعت امم ماضیه نیز خواهند نمود ـ بیت

کریم‌السجایا شفیع‌الامم نبی‌البرایا شفیع الامم

قال علیه‌السلام اَنَا سَیِّدُ وَلَدِ آدَمَ یَوْمَ الْقِیمَةِ وَاَنَا اَوَّلُ مَنْ یَنْشَقُّ عَنْهُ الْقَبْرُ وَاَوَّلُ شَافِعٍ وَاَوَّلُ مُشَفَّعٍ ، وهدیه سلام و تحفه درود نامعدود برآن رسول مقبول صلی‌الله علیه وسلم باد که نوای لااِلٰه اِلاالله صدای پنج نوبت اوست و اوازهٔ محمد رسول‌الله طنطنه کوس ملت اوست و بران مهتر و سرور اصفیا که چون حضرت نوح علیه‌السلام را از نام او حرفی بود از طوفان نجات یافت ، و چون که حضرت موسیٰ علیه‌السلام را از نام او حرفی بود بعلو درجات رسید ، و چون که حضرت داود علیه‌السلام را از اسم او حرفی بود پای همت بر سریر خلافت نهاد ،

د هغې په حقله راوړی شوی دی۔ او انبیاء او اولیاء به هم د هغې ورځې د هیبت نه سر پورته کولې نهٔ شي ۔ لکه د هغې ورځې په باب کښې ئې ویلی دی چه:

درآن سال کز فعل پرسند قول　　اولوالعزم را تن بلرزد به هول

او هر څوک به نفسي نفسي وائي۔ د الله تعالی فرمان دے چه ((په هغه ورځ به تښتي سړے د خپل رور نه او د مور نه او د پلار نه او د ښځې نه او د اولاد نه))۔ او هغه(صلعم) به د خپلو امتیانو د کبیره ګناهونو د مغفرت په خاطر امتي امتي وائي۔ نبی کریم علیه‌السلام فرمایلي دي چه ((شفاعت زما به وی د کبیره (ګناه) کونکو د امت خپل د پاره))۔ او د تېرو امتونو شفاعت به هم کوی۔ بیت:

کریم‌السجایا شفیع‌الامم　　نبی‌البرایا شفیع‌الامم

حدیث نبوی دے ((زهٔ سردار د بني آدمو یم په ورځ د قیامت او زهٔ هغه یم چه د ټولو نه اول به قبر چوی د هغه (د ټولو نه اول به زهٔ پورته کېږم د خاورو نه) او اول (د ټولو نه) شفاعت کونکے یم او اول شفاعت قبول کیدونکے یم))۔ او ډېر ډېر سلامونه او درودونه په هغې رسول مقبول صلی‌الله علیه وسلم چه د لااله الاالله پنځه وخته غږ د هغهٔ نوبت دے او د محمدالرسول‌الله اواز د هغهٔ د امت نغاره ده، او د اصفیاؤ په هغه مهتر او سرور چه د حضرت نوح علیه‌السلام په نوم کښې د هغهٔ د نوم یو حرف وو نو د طوفان نه ئې بچ کړے دے۔ او چه د حضرت موسیٰ علیه‌السلام په نوم کښې د هغهٔ د نوم یو حرف وو نو د اعلیٰ درجو خاوند شوے دے۔ او چه د داؤد علیه‌السلام په نوم کښې د هغوئ د نوم یو حرف وو نو د همت قدمونه ئې د خلافت په تخت کښېښول او چه د حضرت

و چون که حضرت سلیمان علیه‌السلام را از نام او حرفی بود بسلطنت ملکاً لا ینبغی لاحد من بعدی رسید ـ قطعه

این چه نام دل کشایست چونکه موسیٰ و مسیح
افسر خود کرده اند از میم ملک آرای او
این چه اسم است چونکه نوح و یحییٰ و اسحاق را
فیض حمد و حکم و حشمت داده اند از جای او
تا به میمش نام ابراهیم و آدم شد تمام
چون سلیمان کرد اسماعیل در دل جای او
دال دینش کو در آخر هادی خود آمده
سینهٔ ادریس و آدم را نگر ساوای او
حضرت داؤد کز صیتش دو عالم بر صداست
از همین یک حرف زینت یافت سر تا پای او

پس لازم بلکه واجب علے‌العموم بر هرکس که شکر این نعمت عظمی و رحمت علیا بجا آورده که وجود پاک وی نعمت آدمیانست و رحمت عالمیان قال‌الله تعالیٰ وَمَا اَرْسَلْنَاکَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِیْن چون شکر از قبیل فعل است که بجمیع جوارح واعضا حاصل میشود خاص بزبان نیست لازم اینست که نعم جمیع جوارح و اعضا را هر کس در مصرف خود که اقامت برجادهٔ شریعت نبوی است صرف نماید و تشریف دین و ملت او از حق جل و علا منت شناسند و متابعت

سلیمان علیه‌السلام په نوم کښې د هغوئی د نوم یو حرف وو نو ((یوه داسې بادشاهی چه نهٔ وی هېچا له پس زما نه)) په سلطنت اونمانځلے شو۔

قطعه

این چه نام دلکشایست چونکه موسیٰ و مسیح
افسر خود کرده اند از میم ملک آرای او
این چه اسم است چونکه نوح و یحیی و اسحاق را
فیض حمد و حکم حشمت داده اند از جای او
تا به میمش نام ابراهیم و آدم شـد تمـام
چون سلیمان کرد اسمعیل در دل جای او
دال دینش کو در آخر هادی خود آمده
سینهٔ ادریس و آدم را نگر ما وای او
حضرت داؤد کز صیتش دو عالم پُر صداست
از همین یک حرف زینت یافت سر تا پای او

پس لازم بلکه واجب دی په هر چا چه په داسې لوئے نعمت او رحمت شکر اوکړی چه دا پاک وجود (صلعم) د بنیادمو د پاره نعمت او د کل عالم د پاره رحمت دے الله تعالی فرمائی ((او نهٔ ئے لیږلے ته مونږه (دنیا ته) مګر رحمت د پاره د ټول مخلوق))۔ هر کله چه شکر د عمل په شمېره کښې راځی په ټولو اندامونو او اعضاؤ تر سره کېږی او تش په ژبه اقرار ته نهٔ وائی، نو لازم دی چه هر څوک د ټولو اندامونو او اعضاؤ نعمتونه په دے اونمانځی چه د شریعت په لاره ډِ روان وی او د دین او ملت برتری دے د الله تعالیٰ

سنت و احیاء طریقت او غنیمت شمارد و در ادای او کما ینبغی بجان کوشد که نجات ابدی و سعادت سرمدی بدون آن نخواهد یافت۔

مثنوی

محال است سعدی که راه صفا
توان یافت جز در پئی مصطفیٰ
خلاف پیمبر (صلعم) کسی ره گزید
که هر گز بمنزل نخواهد رسید

پس زهی خجستگی و فرخندگی پایان که چنین سیدی پیشوائی مایان شده۔

بیت

شکر حق را که پیشوا داریم  پیشوائی چو مصطفیٰ داریم

چنانچه شاعری در وصف او گفت۔ بیت

کرد لوانصب در ایوان هو  تحت لوا آدم و من دونه

بیت

سیدالکونین فخرالمرسلین  آخر آمد بود فخرالاولین

بیت

شفیع‌الورا خواجه بعث و نشر  امام‌الهدیٰ صدر دیوان حشر

و چنان سیدی که هیچ عاصی بشومی عصیان به شفاعت او در دوزخ نماند۔

بیت

نماند بعصیان کسی در گرو  که دارد چنین سید پیش رو

بیت

چه غم دیوار امت را که باشد چونتو پشتیبان
چه باک از موج بحرآنرا که باشد نوح کشتیبان

سنت اوګنړی ـ او د هغهٔ د سنت متابعت او د هغهٔ د طریقت احیاء دے غنیمت اوګنړی او د دوئی په ادائیګئ کښے دے تر خپله وسه وسه کوشش کوی چه د دے نه بغیر څوک ابدی نجات او سرمدی سعادت نهٔ شی موندے ـ

مثنوی

محال است سعدی که راه صفا  توان یافت جز در پئ مصطفیٰ
خلاف پیمبر کسی ره گزید  که هرگز بمنزل نخواهد رسید

دا زمونږ بـهٔ نصیبی او خوشبختی ده چـه داسے سید (صلعم) زمونږ پیشوا شوے دے ـ

بیت

شکر حق را که پیشوا داریم  پیشوائی چو مصطفیٰ داریم

څکه یو شاعر د هغوئی په صفت کښے ویلی دی ـ

کرد لوانصب در ایوان هو  تحت لوا آدم و من دونه

بیت

سیدالکونین فخرالمرسلین  آخر آمده بود فخرالاولین

بیت

شفیع الورا خواجهٔ بعث بشر  امام الهدیٰ صدر دیوان حشر

داسے سید چه یو عاصی به هم د ګناهونو په سبب د دوئی د شفاعت له مخه په دوزخ کښے پاتے نهٔ شی ـ

بیت

نماند به عصیان کسی در گرو  که دارد چنین سیدِ پیش رو

بیت

چه غم دیوار است را که باشد چون تو پشـتیبان
چه باک از موج بحر آنرا که باشد نوح کشـتیبان

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ وَ سَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ
رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ـ وَصَلَّى اللّٰهُ عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَّ آلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ ـ
اَللّٰهُمَّ صَلِّ اَحْيِنَا عَلٰى سُنَّتِهٖ وَتَوَفَّنَا عَلٰى مِلَّتِهٖ وَاحْشُرْنَا فِي زُمْرَتِهٖ وَ تَحْتَ
لِوَائِهٖ وَاسْقِنَا بِكَأْسِهٖ وَانْفَعْنَا بِمَحَبَّتِهٖ آمِيْنَ يَا رَبَّ الْعَالَمِيْنَ ـ

## بعد از تمهید و مبدء کتاب

بعد از حمد احد و درود احمد میگوید بنده عاصی پر معاصی
امیدوار مغفرت حافظ رحمت ابن شاه عالم کوٹ خیل بدل زئی بڑیچ
... بنی غَفَرَاللّٰهُ تَعَالیٰ ذُنُوبَهٗ وَسَتَرَعُیُوبَهٗ دیدم که اکثر اشراف زادگان
ولایت بحسب قسمت آبخور ملک وطن خویش بیجا شده آمده در
هندوستان متوطن گشته اند، و پشت در پشت گشته آل و اولاد ایشان
انساب خودها را فراموش کرده هیچ نمیدانند که کسی با کسی
نزدیک تر و کدام با کدام قریب تر، مگر این قدر میدانند که
فلانی خیل و فلانه قوم هستیم پس چون که بنده هم اباً عن جد
... یت زای است چنانکه قبلگاهی ابوی و اعمام بنده از راه قسمت
آبخور بهندوستان آمده ساکن شده بودند بنده هم در پس ایشان آمده
... ح اقامت درینجا انداخت و باقی مردم کوټه خیل نیز پس و پیش

((پاکی ده رب ښتا لره چه خاوند د عزت دے د هغه (خبرو) نه۔ چه دوئی (کفار) ئے وائی۔ او سلام دِ وی په رسولانو او ثنا ده صرف الله پاک لره چه پالونکے د ټول مخلوق دے۔ او درود دِ وی په هغه بهتر د ټول مخلوق په محمد (صلعم) او په خاندان د هغهٔ او په اصحابو د دهٔ ټولو باندِ۔ یا الله ژوندی اوساتے مونږ لره په طریقه د دهٔ باندے او مړهٔ کړے مونږ لره په دین د دهٔ باندے او راجمع کړے مونږ لره (په قیامت) په ټولی د دهٔ کښیے او (اودروے مونږ لره) لاندِ د نشان د دهٔ۔ او اوسکوے په مونږ په پیاله د دهٔ (اوبهٔ د حوض کوثر) او نفع راکړے مونږ لره په محبت د دهٔ۔ یا الله دا دعا قبوله کړے اے پالونکیه د ټول مخلوق))۔

پس د تمهید او د کتاب د مبداء نه

او پس د حمد د احمد درود د احمد دا بنده عاصی او ګناهګار د مغفرت او بخښنے امیدوار حافظ رحمت ابن شاه عالم کوټه خیل بدل زے برېڅ سړبنے ((او دِ بخښی الله تعالیٰ ګناهونه د دهٔ۔ او پټ د کړی (الله) عیبونه د دهٔ)) داسے وائی چه د ولایت ډېر اشرافزادګان د رزق د نصیبے په تلاش د خپل وطن نه راپاسیدلی دلته هندوستان ته راغلی دی او اباد شوی دی۔ او پیړئ په پیړئ دلته په استوږنه د دوئی د آل و اولاد نه خپل خپلونه او نسبونه هېر شوی دی۔ اوس چا ته هم دا نهٔ ده معلومه چه څوک چا ته زیات نېزدے دے او د چا د چا سره خپلوی ده۔ خو دا قدرے ورته معلومه ده چه د فلانی خېل او فلانی قبیلے نه یو۔ خو هرکله چه دا بنده هم ځائی د ولایت دے چنانچه زما د پلار او ترونو هم د هندوستان روزی په نصیب وه په دوئی پسے راغلل او دلته مېشته شول او پاتے کوټه خیل هم روستو په دوئی پسے

آمده همچنین درینجا همه مجتمع گشتند تا بحدیکه در ولایت هیچکس از مردم کوټه خیل نمانده همه درینجا آمدند پس چونکه بنده را و ایشان را نیز توالد و تناسل شده حصص کثیر گشتیم هر چند که از فرزندان سعادتمندان خود و اولاد ایشان از نسب خود و شناختن اقربا و ذوالقربا استفسار نمایم هیچ نمیدانند و قریب و بعید را نمی شناسند لا جرم انچه باین حقیر* پر تقصیر از انساب خود و غیر خود اطلاعی بوده فرا خور علم و دانش خود بیان نموده در تحریر آورد تا بترک تعلیم آن معاتب نگردد و در مواخذه نیفتند قَالَ عَلَيْهِ السَّلام مَنْ كَانَ يُؤمِنُ بِاللهِ وَالْيَومِ الْآخِرِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ و ایضاً قال علیه السّلام تَعَلَّمُوا مِنْ اَنْسَابِكُمْ مَا تَصِلُونَ بِهِ اَرْحَامَكُمْ فَاِنَّ صِلَةَ الرَّحِيْمِ مُحَبَّةٌ فِي الْاَهْلِ وَ مَثْرَاةٌ فِي الْمَالِ وَ مَنْسَاۃٌ فِي الْاَثَرِ و نیز رعایت صله رحمی از که از جمله واجبات است۔ بی بهره نمانند قال الله تعالیٰ لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللهَ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّ ذِي الْقُرْبىٰ و بمرورِ ایام مجهول نسب نشوند که موجب تخفیف ایشان خواهد بود و آنچه در کتب فقه آمده است که وَلَا يُعْتَبَرُ فِي الْعَجَمِ ، كُفُوٌ لِاَنَّ الْعَجَمَ ضَيَّعُوْا اَنْسَابَهُمْ ، فی‌الواقع همچنین است که از اکثر عجم نسب خود

---

* په اصل نسخه کښې احقیر لیک دے۔

دلته راغلل او دغه شان تول دلته راتبول شول حد دا چه یو کورته
خپل هم په ولایت کښې پاتے نهٔ شو۔ او هرکله چه زما او د
دوئ تپولو اولاد اوزیږیدو او ډیرے تیرے شو نو اوس چه د
خپلو بچو او عزیزانو نه مونږ دا تپوس کوو چه ستاسو عزیزولی
خپلولی او قرابتداری کومه ده نو هغوئ ترے هیڅ هم نهٔ دی
خبر او خپل لرے او نیزدے عزیزان او خپلوان نهٔ پیژنی۔ ځکه دے
حقیر پُر تقصیر ته چه د خپلو او نورو د انسابو په حقله څه معلوم
وو د خپل علم او پوهے په اندازهٔ بیان کړل۔ او اوئے لیکل چه
دا بیخی هېر نهٔ شی او د دے په مواخذه او گرفت کښې را نهٔ شو۔
ځکه چه نبی علیه‌السلام فرمائیلی دی چه ((هر څوک چه ایمان لری
په ورځ د قیامت پس دومتی دِ کوی خپلوانوسره ـــــ او همداسے
فرمائیلی دی رسول کریم صلعم، ښودنه کوئی د خپلو نسبونو چه رسیږی
ستاسو خاندان ته ښکه خپلولی د خپلو خپلوانو سره محبت دے په
خاندان کښې او زیادت دے په مال کښې او اوږدوالے دے عمر
کښې)) او بیا د صله رحمئی د خاطره چه په واړه واجباتو کښې یوه
ده ، دِ دے نه بے برخے نهٔ شی۔ الله تعالیٰ فرمائیلی دی ((عبادت به نهٔ
کوئی بغیر د الله تعالیٰ نه او د مور پلار سره نیک سلوک کوئی
او خپلو خپلوانو سره هم)) او چه د وخت په تیریدو مجهول‌النسب
نهٔ شی۔ هسے نه چه دا د دوئ د کمی باعث شی۔ او د فقهے په
کتابونو کښې ئے لکه چه راوړی دی چه ((او اِعتبار نشته په
عجمو کښې د سیال‌ولئی ځکه چه عجمو خپل نسبونه ضایع کړی دی۔
(هېر کړی دی)) واقعی چه همدغسے ده چه اکثرو عجمیانو خپل

ضایع شده است مگر از قوم افغانان ضایع نشده است ، زیراکه در تفاسیر و تواریخ از ابتدای دور حضرت ابراهیم و حضرت یعقوب صلوات‌الله علی نبینا و علیهما تا غایت ملک طالوت و از طالوت تا افغان و از افغان تا قیس و از قیس عبدالرشید تا هذالیوم شاخ در شاخ و گروه در گروه و قبیله در قبیله آمده اند فَکَیْفَ یَکُوْنُوْنَ مَجْهُوْلَ النَّسَبِ لانَّ الْعِلَّةَ فِیْ عَدَمِ الْکَفاةِ جَهَالَةُ النَّسَبِ وَ هِیَ لَمْ تُوْجَدْ فِیْ حَقِّهِمْ فَظَهَرَ اَنَّهُمْ صَحِیْحُ النَّسَبِ و اگر چه نزدیک حق تعالی نسب را اعتباری نیست و فخر آدمی از ذات و نسب نے ، قال‌الله تعالی فَاِذَا نُفِخَ فِی الصُّوْرِ فَلَاَ اَنْسَابَ بَیْنَهُمْ یَوْمَئِذٍ وَّلَا یَتَسَاءَلُوْنَ بلکه مکرمت و منزلت آدمی از ورع و تقوی است ـ قال‌الله تعالی اِنَّ اَکْرَمَکُمْ عِنْدَاللهِ اَتْقٰکُمْ ، لیکن در عالم روزگار و امور دنیوی و قر و قار آدمی بسبب شرافت ذات و نجابت اصل میباشد چنانچه عادت الله هم برین جاری شده که رسل و انبیا را در قبیله اعلی و اصتفا مبعوث میگردانید تا در چشم مردمان حقیر ننمایند و بدیدهٔ استخفاف در ایشان نه نگرند و همچنین شرع شریف نیز ایشانرا اعتبار داده است چنانچه تعزیر شریف

انساب ضایع کړی دی خو یو پښتانهٔ داسے اولس دے چه د دوئ نسبونه لا تر دے وخته ضایع شوی نهٔ دی۔ ځکه چه په تفسیرونو او تواریخو کښے د حضرت ابراهیم او حضرت یعقوب صلوت‌الله علیٰ نبینا و علیهما نه راواخله تر ملک طالوت او د طالوت نه تر افغان او د افغان نه تر قیس او د قیس عبدالرشید نه تر نن ورځے پورې په پورې او څانګه په څانګه د هر خېل او د هرے قبیلے درک معلوم دے۔ ((او څنګه به شی دوئ نامعلومه د نسب ځکه چه سبب په نهٔ سیال‌وَلئ کښے نهٔ معلومېدهٔ د نسب (اصل) دی او دا خبره نهٔ ده پیاموندے شوے په حق د دوئ کښے پس ښکاره ده چه دوئ صحیح‌النسب دی)) او اګر چه د حق تعالیٰ په نزد نسب څه اعتبار نهٔ لری او د سړی فخر او سړیتوب په ذات او نسب نهٔ حسابیږی د خدائے پاک د دے ارشاد په موجب چه ((پس کوم وخت چه (روحونه) ُپوکوالے شی په شپېلئ کښے (قیامت شی) پس نهٔ به وی نسبونه په دوئ کښے په دغه ورځ (د قیامت) او نهٔ به د دوئ نه تپوس کیږی)) بلکه د سړی تکریم او لوړتیا په ورع او تقویٰ باندے ده۔ الله تعالیٰ فرمائی ((بېشکه عزتمند الله تعالیٰ ته په تاسو کښے تقویٰ داره (بنیادم) دے)) خو د دنیا په چارو او روزګار کښے او په مذهبی معاملاتو کښے د سړی وقار او درناوے په نسلی شرافت او نجابت وی۔ چنانچه د الله تعالیٰ خپل عادت هم په دے جوړ جاری پاتے شوے دے او رسولان او انبیاء ئے په غوره قبیلو او نسل کښے مبعوث کړی دی د دے د پاره چه دوئ د خلقو په سترګو کښے کوز رانهٔ شی او د تحقیر او سپکاوی په سترګه ورته څوک اونهٔ ګوری او دغه رنګ په شرعا شریفه کښے هم په دوئ زیات باور کیږی۔ چنانچه د شریف او

و خسیس برابر نیست ـ کما جاء فی کتب الفقه ـ اذ قال بالفارسیّة
یَا نَاکَسُ اِنْکَانَ لْلاَ شْرف عُزّرَ وَ اِلَّا لاَ وهمچنین د ر حق بنات اشرف و
ارزال نیز فرقی آمده است ـ کَمَا قِیْلَ مَنْکُوْحَةٌ اَبَتْ اَنْ تَطْبَخَ وَ تَخبزَ
فَعَلَی ا لزَّوْجِ اَنْ یَّاْتِیَ مِمَّنْ یَطْبَخُ وَ یَخْبَزُ اِنْ کَانَتْ مِنْ بَنَاتِ ا لْاَشْرَافِ
واِلَّا لاَ ـ و ا ز رسول مقبول نیز همچنین بصحت پیوست است کقوله
علیه‌السّلام اِذَا جآءَ کُمْ سَیِّدُ قَوْمٍ فَاَکْرِمُوْهُ و دیگر آنکه آدمی بسبب
جهالت نسب مجهول نسب میشود مطعون و معیوب میگردد و از
صلهٔ رحمی که از جمله واجبات است محروم می ماند ، هکذا در
موضع بسیار که حاجت بیان ندارد ـ پس چونکه معرفت انساب و
اقارب خود از جمله ضروریات دانسته شد معرفت انساب غیر در
بعضی مقام نیز ضرور تر باید دانست ـ چنانچه معرفت نسب حضرت
نبوی مصطفوی صلی‌الله علیه وسلم تا چهار پشت که متفق علیه است
چنانچه بگوید که ایمان آورده ام به محمد علیه‌السلام والصلوة یعنی
بمحمد ابن عبدالله ابن عبدالمطلب ابن هاشم ابن عبد مناف که از
جمله مفروضات است همچنین معرفت انساب ائمه اربعه رضوان‌الله تعالی
علیهم اجمعین بقول بعضی بران کسی که در مذهب او باشد بهتر و

رذیل تعزیر یو شان نهٔ شی گنڑلے کېدے ـ لکه چه د فقهې په کتابونو کښې ئے لیکلی دی چه ((که چرے اوونیل (یو سړی بل ته) اے ناکسُ (کم اصله) نو که وو دا (لفظ) په حق د اشراف کښې نو سزا به ورکولے شي او که نه (دا وینا ئے اشراف ته نهٔ وه) نو سزا ورله نشته)) او دغه رنګ د اصیلو اوکمایه لونړو په حقله هم فرق موجود دے. لکه چه ویلی ئے دی ((یوے ښځے (خپل څختن ته) انکار اوکړو د ډوډئ پخولو نه نو شته په څختن چه راولی څوک داسے چه ډوډئ ورله پخوی که چرے وی دا ښځه د اشرافو د اولاد نه، او که نهٔ وی نو نه (بلکه هم دا به پخوی))) او د رسول مقبول د حدیث نه د دے خبرے صحت کړے شوے دے فرمائی ((کوم وخت چه راشی تاسو ته سردار د قوم نو تاسو عزت کوئ د دهٔ )) بله دا چه انسان د خپل جهالت له کبله مجهول‌النسب شي او د طعنو او عیبونو لار ورته خلاصه شي. او صله رحمی چه دواړو واجباتو نه یوه ده په دوئ کښې ورکه شي همدغسے نور ډېر مثالونه شته دے خو تفصیل بیانول ئے ضروری نهٔ دی. نو هرکله چه د انسابو معرفت او د خپلو خپلوانو پېژندل د جمله لوازماتو نه یوه لازمه ده د نورو د انسابو معلومول هم ډېره ضروری خبره ده. چنانچه د نبی مصطفیٰ صلی‌الله علیه وسلم نسب تر څلور پشته هر چا ته معلوم دے لکه چه وائی چه ایمان مے راوړے دے په محمد علیه‌السلام والصلوٰة یعنی په محمد (صلعم) چه څوی د عبدالله او عبدالله څوے د عبدالمطلب او عبدالمطلب څوے د هاشم اوُ هاشم څوے د عبدمناف دے ـ او دا هم د ټولو فرایضو نه یو دے ـ دغه شان د څلورو امامانو رضوان‌الله تعالیٰ علیهم اجمعین د نسب علم د هغه چا د پاره چه څوک ئے په مذهب دی ډېر

اولی است چنانچه حنفیان را که نعمان بن ثابت بن طاوس بن هرمز بکذا مالکیان را و حنبلیانرا و شافعیان را مذاهب ایشان صحیح گردد و همچنین معرفت انساب غیر در بعضی مقام نیز ضرور تر باید دانست همچو ابنای و اہل عصر نیز در حین معامله و روزگار که ازان لابدی و ناچارگی میباشد مثل ازدواج ، خواهران و دختران که در کتب آمد است که اولاد را بر والدین خود چند حقوق میباشد که بعضی ازان جمله اینست که نام ولد خود خوب و نیکو نهند و علم دین ویرا بیا موزانند که جمیع اوامر و نواهی حق جل و علا را بشناسد و بجای نیک منسوب سازند و بمقام احسن و مستحسن ازدواج دهند تا حق اولاد ادا شده بحق خود برسند و با اولیاء ایشان عار و بدنامی لا حق نگردد لا جرم آنچه بدین حقیر پر تقصیر از انساب خود و دیگر اقوام افغانان از کتب تواریخ چنانچه ''تاریخ خانجهانی،، و ''تاریخ شیرشاهی،، و تذکره ''برهان‌السالکین،، اخوند درویزه قدس سره معلوم شده در حیّز بیان آورد و انچه صورت حال بعضی اقوام افاغنه از سبب عدم تسطیر کتب مذکوره مخفی و مستور مانده بود۔ از انجا که این بنده ولایت زای بوده و بر اصل و نسب هر یک قوم اطلاعی داشت معهذا از ثقات معتبر و رؤسای هر قوم که از فضل ایزدی بملاقه نوکری و چاکری بسیار از بسیاری پیش اینجانب

دِ غورے خبره ده۔ لکه د حنفیانو امام ابو حنیفه چه نعمان ځوے د
ثابت ځوے د طاوس ځوے د هرمز دے دغه رنګ د مالکیانو او
حنبلیانو او شافعیانو د مذهب هم دا لار ده۔ په دے شان د نورو
د انسابو معرفت هم کله کله ډیر ضروری او لازم وی۔ لکه د خپل
وخت د هغه خلقو د پلرګنو او اولاد چه د چا سره لازماً معاملات
پیښیږی۔ لکه د خوښندو او لونړو د ورکړهٔ راکړهٔ په وخت لکه چه
په کتابونو کښے راغلی دی چه په خپل مور او پلار د اولاد ځنے
حقوق دی په هغو کښے یو ځو دا دی۔ چه د خپل ماشوم نوم دِ
ښهٔ خوندناک ږدی او د دین د علم زده کړه دِ ورته کوی چه د
خدائے پاک د احکامو په ټولو اوامرو او نواهیو خبر شی۔ او په ښهٔ
ځائے کښے دِ ئے کوژدن کوی او په غوره ځائے کښے دِ ورله
وادهٔ کوی۔ چه د اولاد دا حق په صحیح جوړ ادا شی او کله چه
دوئی سر ته اورسی نو چه د مشرانو بدنامه او سپکاوے پرے نهٔ
کیږی۔ په دے ضمن کښے چه دے حقیر ُپرتقصیر ته د خپلو انسابو
او د جمله پښتنو د نسب نامو په حقله د تاریخ د کتابونو لکه د
تاریخ خانجهانی او تاریخ شیر شاهی او د برهان‌السالکین اخون درویزه
قدس سره د کتاب تذکرة‌الابرار والاشرار نه څه معلومات په لاس
راغلی دی هغه مے دلته بیان کړی دی او د بعضو پښتنو قبائیلو په
حقله چه څه خبره وضاحت طلب وه او په کتابونو کښے نهٔ شوه
موندلے نو هر کله چه دا بنده ځائی د ولایت دے او د هر قوم او
اولس د اصل او نسب نه خبر دے او د دے سره د دوئی د ځینو
ثقه معتبرانو او رئیسانو چه د بیلے بیلے قبیلے او خیل نه دی او د
خدائے په فضل دلته ډیر ثنان د نوکرئی او ملازمت په غرض زما سره

حاضر بودند تحقیقی و تفتیش کرده شد آنچه بحد تواترو بمرتبهٔ صحت و یقین رسیده آنرا مثبت گردانید باقی الله اعلم بحقیقةالحال بنا بران این رساله مختصر مخبره بر ”خلاصةالانساب“ خود وغیره مطابق علم و استعداد خویش تصنیف شده مرتب گردیده و ”بخلاصةالانساب“ مسمی گشت تا هر که از اولاد اینجانب و کوټه خیل وغیره اقوام افاغنه ازین مستفید شده بهره ور گردد و بخویش و بیگانه و قریب و بعید وقوف یابد این عاصی پر معاصی امیدوار فضل باری را بوسیله این رساله به دعای خیر خاتمه و سلامتی کونین یاد و شاد فرماید که بموجب ارحموا ترحموا وی نیز متوقع مرحمت و دعا گردد اَللّٰهُمَّ اَحْسِنْ عاقِبَتَنَا فِیالْاُمُوْرِ کُلِّهَا وَاَجِرْنَا مِنْ خزی الدُّنْیَا وَ عَذَابِالْآخِرَة آمِیْنَ یا اَرْحَمَالرَّاحِمِیْنَ ۔

---

موجود وو د هغوئی نه یے تحقیق او تفتیش هم کړے دے۔ او هغه
څه چه د تواتر او صحت یقین مو پرے شوے دے هغه مو ریښتیا
گنړلی دی او د پاتےشونو په حقله الله اعلم په حقیقةالحال ۔ دغه شان
دا مختصره شان رساله چه خلاصةالانساب ورته ویل پکار دی زمونږ
او نورو قبیلو د انسابو په حقله ما د خپل استعداد په تابین اولیکله۔
د دے د پاره چه زما اولاد او د نورو کوته خپلو او پښتنو
راتلونکی نسلونه ترے استفاده کوی۔ او په خپلو او پردو او وریسته
او نزدو باندے خبر وی۔ او دا گناهگار د الله تعالیٰ د فضل و کرم
امیدوار د دے رسالے په وسیله د خبر په دُعا کښے یاد کړی او د
دهٔ د پاره په کونږو د سلامتیا دُعا اوکړی چه د ارحموا ترحموا په
موجب هغه هم د رحمت او دُعا حقدار شی۔ ((اے خدایه ښهٔ کړے
انجام زمونږه په ټولو کارونو کښے او اوساتے مونږه د شرمندګئ
د دنیا او عذاب د آخرت نه ۔ آمین ۔ اے ډیر زیات مهربانه د
مهربانانو))

---

## ذکر در بیان شیخ کوټه علیه‌الرحمة

بر ضمایر اولوالالباب پوشیده و مخفی نماند که اسم محضه شیخ کوټه شهاب‌الدین بود اما چون از راه شکستگی خود را سگ جناب رسالت پناه صلی‌الله علیه وسلم مقرر کرده بود خود را به کوټه مقرر گردانید۔

بیت

نسبت خود به سگت کردم و بس منفعلم
زانکه نسبت بسگِ کوی تو شد بی ادبی

و وی در اصل بړیچ بود خصوصاً بدل زئی که بحسب آبخور از مضافات قندهار و موضع پشین و شوراوک که وطن اصلی ترین و بړیچ است بیجا شده آمد در موضع اټک و لنگرکوټ استقامت نمود چنانچه زبان افغانی آنجائی نیز میگفتند و فرزندان متولدان اینجائی هم بنابر تیغ و آموخت وی بعض بعض الفاظ آن نواحی میگفتند پس شیخ مذکور مرحوم به طوع و رغبت خود گاهی در ملک سمه سکونت مینود زیراکه قبل از وی اقوام بړیچ نیز در انجا آمده متوطن بودند چنانچه پانی زئی، جلی زئی و در بدل زئی ملاخیل و دولت خیل وی نیز در تعاقب ایشان آمده متاهل گشت و فرزندان از وی بوجود آمدند که بیان فرزندان وی در محل خود عنقریب خواهد شد و وی در طریقه علیه سلسلۀ قادریه داخل بود و اکثر اوقات بیاد الهی مستغرق و صاحب کشف و کرامات بود۔

**بیان کرامات شیخ شهاب‌الدین** گویند که گاهی گاهی از غایت ذوق و شوق که بر ایشان مستولی شده راه صحرا گرفتی و در بادیه و بیشه می گردیدی و تمام سال بخانه نیامدی چنانچه مردم اهل خانه وی چنان معلوم شدی که

## ذکر په بیان د شیخ کوته علیه‌الرحمة کښې

د شیخ کوته اصل نوم شیخ شهاب‌الدین وو خو د ډېرے عاجزئ او مینے له کبله به ئے ځان ته د جناب رسالت پناه صلی‌الله علیه وسلم د در سپے ویلو۔ بیت

نسبت خود به سگت کردم و بس منفعلم
زانکه نسبت به سگ کوئی تو شد بی ادبی

او هغه په اصل برېڅ او په برېڅ کښې بدل‌زے وو چه د رزق نصیبه ئے هر کله د قندهار د پشین او شوراوک په مواضعاتو کښې تمامه شوه چه دغه علاقے د ترینو او بریڅو اصل مسکن دے نو هغه ځایه راپاسېدو او د اټک او لنګرکوټ په سیمه اباد شول۔ ځکه خو به ئے د هغه سیمے پښتو هم ویلے شوه او د اولاد په خبرو اترو کښې ئے هم دغه اثر موجود وو او ځنے لغات به ئے د هغې ژبے استعمالول۔ شیخ کوته مذکور به پخپله طبعه او رغبت کله چمله او کله په ممه کښې اوسېدو۔ ځکه چه د دے نه اګاهو ځنے برېڅ قبائل دلته راغلی او اباد شوی وو۔ چنانچه پانی‌زئ علی زئی او په بدل زو کښې ملا خیل او دولت خیل هم په دوئ پسې غلته راغلل او اباد شول۔ او اولاد او بچی ئے اوشول۔ چه د غوئ ذکر به په خپله موقع راشي۔ او شیخ کوته په طریقهٔ عالیه قادریه داخل وو۔ او اکثر به د خدائے پاک په یاد کښې مشغول او مستغرق وو۔ او هغه د کشف او کراماتو خاوند وو۔

د شیخ کوته کرامات: وائی چه کله کله چه به په دهٔ وجد راغے مېږے ته به ئے مخه اوکړه او به ځنګلونو او بیاپانو به ګرځ او تول کال به کورته نهٔ راتلو۔ او د کور خلقو به ئے دا او ګ

شاید از دار فانی نقل نموده بدار باقی خرامید اما چونکه تحقیق و تفتیش وی بسیار کردندی آخرش ظاهر آمدی که کسی میگفتی که در فلانه بیشه و در فلانه موضع دیدم که میگردد و بیاد الٰهی مشغول است و سماع است که هر آن وقتی که در بادیه و بیشه تنها گشتی گاه گاهی شیرو پلنگ وغیره حیوانات جهت زیارت ایشان می آمدندی و کرد بر کرد ایشان قیام مینمودندی حتیٰ که گویند که بر شیرو پلنگ نیز گاه گاهی سوار میشدی نقل است که روزی شخصی بهس در علف دان انداخته پر کرده بود و سرآن علف دان نالیسیده گزاشتند رفته بود قضاءً شیخ مذکور در حالت و جد بران راه آمده دران بهس فرو رفت و پنهان شد و از غایت سکر از حالت خود اطلاعی نداشت علی الصباح آن صاحب علف‌دان آمده از عدم اطلاع وی سر علف‌دان لیسیده برفت و وی همچنان دران بهس بماند تا آن وقتی که مدتی متعاوی براگزاشته موسم خوردن بهس باز آمد صاحب بهس سر آن علف‌دان را باز کرد بکشاد و ویرا همچنان دران میان دیده بکشید تا بعد ازان بهوش آمده برفت و دیگر نقل است که ایشان فرموده بودند که اولاد اینجانب تا هفت پشت انشاءالله تعالی خواری نه بینند و سختی نکشند و وی آخرش در ملک چچ هزاره حیات مستعار خود را بمالک حقیقی سپرده بجوار قدس خرامید و متصل موضع شاهی ڈیر دران مقامی که درختان خٹ و پلوس استاده اند مدفون گردید بَرَّدَاللّٰهُ تَعَالیٰ مَضْجَعَهُ وَجَعَلَ الْجَنَّةَ مَثْوَاهُ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلَهٗ وَلِوَالِدَيْهِ وَلِاَوْلَادِهٖ وَاغْفِرْلَنَا وَلِوَالِدَيْنَا

چه ګنی په حق رسېدلے دے خو تپوس او لټون به ئے جاري وو او آخر به ئے درک معلوم شو۔ چه چا به خبر راوړو چه فلانی ځنګل کښې په فلانۍ بانډه کښې مے لیدو چه د خدائے په یادو کښې مشغول وو او داسے وائی چه څه وخت چه به دے په ځنګلونو او بیابانو کښې یواځے ګرځېدو نو زمرو او شرمخانو او دغه نورو ځنګلی حېواناتو به پرے پېښه کوله او څه به ئے ورته نهٔ وے۔ حد دا چه په دوئی به ئے کله کله سورلی هم کوله۔ وائی چه یوه ورځ یو سړی په بوجئ کښې بوس اچولی وُو خو د بورئ خوله ئے نهٔ وه ګنډلے قضاءً شیخ کوته د وجد په حالت کښې په دغه مخه راپېښ شو او هغے بوجئ ته ورننوت او پټ شو پکښې، او دومره بے خیاله وو چه هیڅ اطلاع ورته نهٔ وه۔ صبا سحر چه د بوسو خاوند راغے نو بوجئ ئے اوګنډله او سنباله ئے کړه او هرکله چه بیا د بوسو د خوراک موسم شو او دا ئے اوسپړده نو څه ګوری چه شیخ پکښې پروت دے هغه سړی چه دے د بوجئ نه راباهر کړو نو په هوش کښې راغے او په خپله مخه نېغ روان شو۔ یو بل روایت دا دے چه شیخ به دا ویل چه انشاءالله زما اولاد به تر اووه پشتونو خواری او نېستی نهٔ وینی او بده ورځ به پرے نهٔ راځی۔ او هغهٔ د چچ هزارے په سیمه د دے نیمګړے دنیا نه سفر اوکړو او د شاه ډېرئ سره نیزدے په هغه ځائے کښې ښخ دے چرته چه د پلوسو او کیکرو لوئے بنړ دے۔ ((یخ دِ کړی الله تعالیٰ ځائے د ارخ لګولو (قبر) د دهٔ، او اودِ ګرځوی الله تعالیٰ جنت ځائے د اوسېدو د دهٔ۔ اے خدایه تهٔ اوبخښې دهٔ لره، او مور پلار دهٔ لره او اولاد د دهٔ، او اوبخښې مونږه او مور پلار زمونږ

وَلِجَمِیعِ الْمُسْلِمِیْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ بِرَحْمَتِکَ یَا اَرْحَمَ الرَّحِمِیْن ـ و از جمله کرامات ایشان یکی اینست که هیچکس بآن درختان که وی در انجا مدفون است غرض نمیکنند و احیاناً اگر کسی عرض کند و از آن درختان چیزی قطع نماید البته نقصان یابد، دیگر آنکه فرزندان و نبیرگان وی از اول تا آخر در قوم یوسف زئی خصوصاً در قوم مندڑ معزز و مکرم بوده ذوی‌الاعتبار منصب دار و جاگیردار بودند و با سرداران قوم مندڑ اکثر باکمال زئی خویشی و دوستی میداشتند و ممتاز عصر درانجا بودند تا آن وقتی که استیقاء رزق از آنجا کرده درین جا آمدند ـ نیز فضل ذوالجلال بهمه حال شامل دارند امید که آینده نیز الله تعالی ایشانرا از نوایب و مصایب از منه در حصن حصین خود مامون داشته محفوظ و محظوظ دارد، بمنه و کمال کرمه دیگر آنکه درین وقت نیز بعضی صاحبان عالیمقام که صاحب کشف و کرامات اند و بدین حقیر قلیل‌البضاعت شفقت دارند دران وقتی که از اجداد و اسلاف اینجانب مطلع نبودند که چه نام دارند و بر تقدیری اگر مطلع هم بودند از شائیبه خوش آمد و در آمد و از واهمه کذب و خلاف دور و بعید اند گاهی گاهی در بعضی مقدمات ماضیه بدین حقیر ظاهر مینمودند که شیخ شهاب‌الدین نام مردی کیست که در فلان فلان مقدمهٔ شمایان نهایت زور ظاهر کرده

او تول مسلمانان او مسلمانانے په مهربانئ خپلے اے زیات مهربانه د مهربانانو)) او د هغوئ یو څرګند کرامت دا دے چه په کوم ځائے کښے چه دے ښخ دے د هغه ځائے د اونو نه څوک ډکے نۀ شی پرېکولے۔ که څوک د هغه اونو نه څه ځانګه نیمه راپرېکړی نو نقصان ورته خامخا رسی۔ بله دا چه د هغۀ اولاد د شروع راسے په یوسفزو کښے خصوصاً په مندنړو کښے د نامے جامے سپین روبی اعتباری منصبداران او جاګیرداران ؤو۔ او د مندنړ د سردارانو خصوصاً د کمال‌زو سره ئے خوینبئ دوستئ وے او ډېر عزت برکت ئے وو تر هغه وخته چه د هغے ځایه دلته په کډه راغلل۔ او اوس پرے هم د خدائے پاک لوئے فضل دے۔ او اُمید دے چه آینده به هم الله پاک دوئ په خپل فضل وکرم اباد او ښاد ساتی او د زمانے د آفتونو نه به ئے په آمان لری۔ او څنې اولیاءالله اوس هم داسے شته چه زما په شان په عاجز او ګناه‌ګار بنده د نیکئ پام لری او مینه راسره کوی۔ او په هغه زمانه چه دوئ ته زما د نیکونو په حقله څه علم نۀ وو چه د هغوئ څه نوسونه ؤو بیا هم هغوئ به کله کله زما نه دا تپوس کوؤ چه دا شیخ شهاب‌الدین ستا څه کېږی چه په فلانئ فلانئ معامله کښے ستا په پره دومره ټینګ ولاړ وو

جد و جهد مینمود و همچنین همیشه در حق شمایان متوجه است و در هر کار و هر امر ممد و معاون شمایانست که مایان چنان دانستیم که وی شیخ شهاب‌الدین سهروردی است اما بعد ازان معلوم شد که شیخ شهاب‌الدین سهروردی نیست بلکه یکی از اجداد شمایانست که همنام شیخ شهاب‌الدین سهروردیست ـ چنانچه در آنوقت بعض اولیا ویرا شیخ ٹکی و یا غیر ازین قسم هم چیزی نام میگفتند ـ پس در خدمت ایشان ظاهر نمودم که وی جد امجد اینجانب است که خیل و گروه مایان بدو منسوب است که آنها را کوٹه خیل میگویند ـ

**ذکر در بیان اولاد شیخ شهاب‌الدین :** مخفی نماند که از شیخ شهاب‌الدین مذکور سه فرزند بوجود آمدند یکی پائی دوم محمود سیوم آدم و پای که فرزندگان مذکور بود از مادر علیحده متولد شده خانهٔ وی بپای مشهور است دوم محمود که به موتی اشتهار دارد سیوم آدم که خانهٔ وی بآدم اشتهار دارد و موتی و آدم هر دو از مادر علیحده متولد شده برادران اعیانی اند ـ

**ذکر در بیان اولاد پائی ابن شیخ شهاب‌الدین :** از پائی ابن شهاب‌الدین سه فرزند بوجود آمدند ـ یکی خوهار که از مادر علیحده متولد شده دوم گدائی سیوم سیرک و این هر دو از مادر دیگرمتولد شده برادران اعیانی اند بیان اولاد خوهار ابن پائی از خوهار ابن پای دو فرزند بوجود آمدند ـ

او ډېر مدد ئې درسره کړے دے۔ او همدغسې هره کړئ په تا د نېکو نظر لري او په هر کار او هره معامله کښې ستا ملګرے او پُشتي دے، زمونږ خو دا خيال وو چه ګني شيخ شهاب‌الدين سهروردي (رح) دے چه ستا نيکه کېږي۔ خو وروستو پته اولګېده چه دا خو هغه نۀ دے بلکه ستا چه څوک نيکه کېږي د شيخ شهاب‌الدين سهروردي (رح) همنام دے۔ ځکه په هغه زمانه کښې به ځينې اولياؤ هغه شيخ تکيے يا دا رنګے څه بل نوم اخيستو۔ نو بيا مے ورته حال اووے چه دا زما غور نيکه دے چه زمونږ خېلخانه ورپورے تړلے ده او په کوته‌خېل يادېږي۔

**د شيخ شهاب‌الدين اولاد :** د شيخ شهاب‌الدين درے ځامن وو د يو نوم پائي، د دويم محمود او د دريم آدم وو۔ پائي د جدا موره وو او د هغۀ اولاد ته پائي خيل وائي۔ دويم محمود دے چه په موتی نوم يادېږي او دريم د آدم اولاد ته آدم‌زي وېلے شي۔ محمود او آدم دواړه سکه ورونړه وو۔

**د پائي ابن شيخ شهاب‌الدين اولاد :** د پائي ابن شيخ شهاب‌الدين درے ځامن وو۔ د يو نوم خوهار وو چه دے د جدا مور نه وو دويم ګدائي او دريم ميرک چه دا دواړه سکه ورونړه وُو۔ د خوهار ابن پائي دوه ځامن وُو

یکی حسن بیگ، دوم طاهر بیگ، اما حسن بیگ، لاولد وفات شده و از طاهر بیگ دو فرزند بوجود آمدند۔ یکی رضا، دوم احمد و از هر دو اولاد باقیست۔

**بیان اولاد گدای ابن پای:** سه فرزند بوجود آمدند اول گنی، دوم بنی، سیوم الهداد، اما از گنی و بنی اولادی نماند و از الهداد فرزندان و نواسگان باقی اند۔

**بیان اولاد میرک ابن پای:** از میرک ابن پای یک فرزند بوجود آمد پاینده نام و از پاینده یک فرزند بوجود آمد بلند نام که بلند با فرزند خود حیاتست۔

**ذکر در بیان اولاد سوتی ابن شیخ شهاب‌الدین:** از موتی ابن شیخ شهاب‌الدین پنج فرزند بوجود آمدند۔ یکی آزاد، دوم شهداد، که ایشان هر دو از مادر علیحده متولد شده کلانتران برادران بودند سیوم حکیم، چهارم حسن، پنجم شاه عالم، که والد این فقیر است و این هر سه از مادر علیحده متولد شده بودند۔

**بیان اولاد آزاد ابن سوتی:** از آزاد ابن موتی چهار فرزند بوجود آمدند۔ یکی شاه مراد، دوم دارا، سیوم دیندار، چهارم اکر، از شاه مراد ابن آزاد شش فرزند بوجود آمدند یکی عزت، دوم‌اسلم، سیوم مهر، چهارم جان محمد، پنجم نسیم، ششم غلام۔ اما عزت و اسلم و غلام هر سه لا ولد وفات یافتند و از جان محمد فرزندان بوجود آمدند حیات

**بیان اولاد دارا ابن آزاد:** دو فرزند بوجود آمدند۔ یکی زهراب دوم مستجاب۔ اما هر دو لا ولد وفات یافتند۔

د یو نوم حسن بیگ وو او د بل نوم طاهر بیگ وو حسن بیگ بے اولاده وو د طاهر بیگ دوه ځامن وو د یو نوم رضا وو د بل احمد ۔ د دے دوارو اولاد موجود دے ۔

**د گدائی ابن پائی د اولاد بیان :** د گدائی ابن پائی درے ځامن وو اول گنی دویم بنی او دریم الله داد ۔ خو د گنی او بنی اولاد نهٔ دے پاتے او د الله داد ځامن او نوسی شته ۔

**د میرک ابن پائی د اولاد بیان :** د میرک ابن پائی یو ځوے وو ۔ نوم ئے پاینده وو ۔ د پاینده هم یو ځوے وو بلند نوم ئے وو او بلند سره د خپل ځوی اوس هم ژوندے دے ۔

**د موتی ابن شیخ شهاب‌الدین د اولاد بیان :** د موتی ابن شیخ شهاب‌الدین پینځه ځامن وو د یو نوم آزاد وو، دویم شهداد چه دا دواړه د یوے مور نه وو او مشران وو ۔ دریم حکیم، څلورم حسن او پینځم شاه عالم چه زما پلار دے۔ او دوی درےواړه د جدا مور نه وو ۔

**د ازاد ابن موتی د اولاد بیان :** د ازاد ابن موتی څلور ځامن وو یو شاه مراد دویم دارا دریم دیندار او څلورم اکر ۔ د شاه مراد ابن آزاد شپږ ځامن وو د یو نوم عزت وو دویم اسلم ، دریم مهر، څلورم جان محمد ، پینځم نسیم او شپږم غلام ۔ په دوئ کښے عزت ، اسلم او غلام بے اولاده وو او میرات سړهٔ شوی دی او د جان محمد ځامن لا ژوندی دی ۔

**د دارا ابن آزاد د اولاد بیان :** د دارا ابن آزاد دوه ځامن وو د یو نوم زیراب وو او د بل نوم مستجاب وو ۔ خو دا دواړه بے اولاده مړهٔ شوی دی ۔

**بیان اولاد دیندار ابن آزاد :** از دیندار ابن آزاد یک فرزند بوجود آمد۔ ایام نام و از ایام فرزندان و بنیرگان باقی اند۔

**بیان اولاد اکر ابن آزاد :** از اکر ابن آزاد دو فرزند بوجود آمدند۔ یکی ملفت دویم محتشم اما محتشم لا ولد فوت شده و از ملفت فرزندان و بنیرگان بوجود آمدند۔ و حیات اند۔

**بیان اولاد شهداد ابن شیخ موتی :** از شهداد ابن موتی دو فرزند بوجود آمدند۔ یکی شادی دوم گوجر اما گوجر لاولد فوت شده و از شادی فرزندگان و نواسگان بوجود آمده حیات اند۔

**بیان احوال حکیم ابن شیخ موتی :** از حکیم ابن شیخ موتی هیچ اولادی باقی نماند۔

**بیان اولاد شیخ حسن ابن شیخ موتی :** از حسن ابن شیخ موتی هفت فرزند بوجود آمدند۔ یکی بشارت، دوم نعمت، سیوم خالد خان، چهارم عابد خان، پنجم صدر خان، ششم دوندی خان، هفتم صلابت خان، اما بشارت و عابد خان و صدر خان لا ولد وفات یافتند و از نعمت خان و خالد خان فرزندان و نواسگان باقیمانده حیات اند و دوندی خان و صلابت خان معه فرزندان و نواسگان خود جمله حیات اند۔

**بیان اولاد قبلگاهی ابوی شاه عالم خان جیو** از شاه عالم خان ابن **ابن شیخ موتی غفرالله تعالی ولوالدیه :** شیخ موتی بدون این فقیر پر تقصیر امیدوار مغفرت حافظ رحمت نام فرزندی دیگر باقی نمانده و این عاجز را نیز از فضل بیچون فرزندان سعادتمندان نصیب شده اند۔ الله تعالی ایشانرا از عمرو جوانی خود برخوردار داشته بسعادت جاودانی مقرون سازد و بر ملت نبوي و شریعت مصطفوی محکم و مستحکم گرداند بفضله و کمال کرمه۔

**د دیندار ابن آزاد د اولاد بیان :** د دیندار ابن آزاد یو ځوی وو ایام نوم ئے وو۔ د ایام اولاد اوس هم موجود دے۔

**د اکر ابن آزاد د اولاد بیان :** د اکر ابن آزاد دوه ځامن وو۔ یو ملفت دویم محتشم، ولے محتشم میرات مړ شوے دے او د ملفت ځامن او نمسی شته دے۔

**د شهداد ابن شیخ موتی د اولاد بیان :** د شهداد ابن شیخ موتی دوه ځامن وو د یو نوم ښادی وو او د بل ګوجر۔ خو ګوجر میرات مړ وو۔ او د ښادی ځامن او نوسی لا ژوندی دی۔

**د حکیم ابن شیخ موتی د اولاد بیان :** د حکیم ابن شیخ موتی هیڅ اولاد نهٔ دے پاتے۔

**د شیخ حسن ابن شیخ موتی د اولاد بیان :** د شیخ حسن ابن شیخ موتی اووه ځامن وو د یو نوم بشارت وو، دویم نعمت، دریم خالد، څلورم عابد خان، پینځم صدر خان، شپږم دوندے خان او اووم صلابت خان۔ ولے په دوئی کښے بشارت خان، عابد خان او صدر خان میرات مړهٔ وو۔ او د نعمت خان او خالد خان اولاد پاتے دے او دوندے خان او صلابت خان مره د خپلو ځامنو او نمسو تول ژوندی دی۔

**بیان زما د پلار شاه عالم ابن شیخ موتی د اولاد :** د شاه عالم خان په اولاد کښے سوا د دے فقیر پُر تقصیر د مغفرت د امیدوار، حافظ چه رحمت ئے نوم دے، بل ځوے نهٔ دے پاتے او د دے عاجز هم د خدائے په فضل صالحه ځامن شته دے خدائے پاک دِ د دوئی ځوانی نصیب کړی او تل عمری سعادت دِ ئے ملګرے وی او په ملت نبوی او شریعتِ محمدی (صلعم) دِ ئے تل محکم لری۔ او د خدائے فضل او کرم دِ وی پرے۔

ذکر در بیان اولاد آدم ابن شیخ شهاب‌الدین: از آدم ابن شیخ شهاب‌الدین سه فرزند بوجود آمدند ـ یکی دلاور که از مادر علیحده متولد شده بود ـ دوم سجاول، سیوم میر خان که این هر دو از مادر دیگر متولد شده بودند و از دلاور نیز سه فرزند بوجود آمدند ـ یکی عنایت، دوم روشن، سیوم مهر جان اما همه فرزندان و نواسگان دلاور فوت شده هیچکس نماند و از سجاول نیز سه فرزند بوجود آمدند ـ یکی خان بیگ، دوم کرم، سیوم رحم خان ـ اما از خان بیگ اولاد وی باقی نمانده و از کرم و رحم خان فرزندان و نواسگان باقی مانده حیات اند، و از پیر خان دو فرزند بوجود آمدند یکی علی خان، دوم سهین، اما هر دو لا ولد فوت شدند تا اینجا بود ـ

بیان اولاد شیخ شهاب‌الدین که ذکر کرده شد و کرسی بکرسی در آورده شد ـ پس لازم که جمیع اولاد شیخ مذکور انساب اسلاف خود را دانست در ضبط و احاط خود آرند تا باقربا و ذوی‌القرباء خود واقف شده خویش و بیگانه و قریب را شناخته دقیقه از دقایق صله رحمی نامرعی نگذارند که در تحت این و عید نیایند کما روی عن عائشه رضی‌الله عنها عن‌النّبی صلّی‌الله علیه وسلّم اَنَّهٗ قَالَ اَلرَّحِمُ مُتَعَلِّقَةٌ

**د آدم ابن شیخ شهاب‌الدین د اولاد بیان :** د آدم شیخ شهاب‌الدین درے ځامن ؤو د یو نوم دلاور وو چه ځان له د مور نه وو، دویم سجاول، او دریم میر خان، چه دا دواړه د یو مور نه ؤو. د دلاور هم درے ځامن ؤو. یو عنایت، دویم روشن او دریم میر جان، خو د دلاور ټول ځامن او نمسی مړه شوی دی او یو هم ژوندے نۀ دے پاتے. او د سجاول هم درے ځامن ؤو. د یو نوم خان بیگ وو دویم کرم او دریم رحم خان. خو د خان بیگ اولاد نۀ دے پاتے او د کرم او د رحم خان ځامن شته دے. او د پیر خان* دوه ځامن ؤو د یو نوم علی خان وو او د بل مهین، خو دا دواړه میرات مړه شوی دی. دا د شیخ شهاب‌الدین د اولاد بیان وو. چه پوړئی په پوړئی اولیکلے شو. نو پکار دا دی چه د شیخ مذکور ټول اولاد د خپلو نیکونو د شجرے نه ځان خبر کړی او یاد ئے کړی او خیال ئے ساتی چه د خپلو خپلوانو او عزیزانو نه خبر وی خپل پردی او نزدے او لرے اوپیژنی او په عزیزولئی او یو تر بله په صله رحمیٔ کښے د هیڅ قسمه کمے او کوتاهی رانۀ ولی. او د دے وعید لاندے رانۀ شی. لکه چه د حضرت عائشه رضی‌الله عنها نه روایت دے چه نبی کریم فرمائیلی دی چه ((خپلولی اوېزانده وی

---

*وړومبے میر خان لیکلے شوے دے.

بِالْعُرْشِ يَقُوْلُ مَنْ وَصَلَنِی وَصَلَهُ اللّٰهُ وَمَنْ قَطَعَنِی قَطَعَهُ اللّٰهُ و ایضاً عن سعید ابن زید عن النّبی صلّی الله علیه وسلّم اَنَّهُ قَالَ اَلرَّحِمُ شُجْنَةٌ مِّنَ الرَّحمٰنِ عَزَّ وَ جَلَّ فَمَنْ قَطَعَهَا حَرَّمَ اللّٰهُ تَعَالیٰ عَلَیْهِ الْجَنَّةَ - و شاهی خیل و کوتہ خیل منشعب شده از دولت خیل اند ما بقی ازین هر دو خیل اولاد دولت را دولت خیل میگویند و دولت خیل و ملا خیل علیحده علیحده بیدل میرسند و بدل از جمله اولاد بڑیچ است و بڑیچ و شیرانی و میانی و ترین و اسرودین که پدر اڑمڑ است این هر پنج فرزندان شرف الدین اند و شرف الدین و خیرالدین هر دو فرزندان سڑه بن اند و سڑه بن و بیٹن غور غشت هر سه فرزندان قیس عبدالرشید اند و انچه درین وقت بزبان فارسی ویرا افغان و بزبان هندوستانی ویرا پٹهان و بزبان افغانی ویرا پشتون میگویند - ازین سه قسم خالی نباشد یا از اولاد سڑه بن باشد و یا از اولاد بیٹن باشد و یا از اولاد غورغشت باشد چنانچه مضمون این معنی از رباعی عمدة الخوانین خوشحال خان ختک از فنون فضایل حظی وافر داشته در هر علم ماهر بود خصوصاً در تواریخ و دانائی و شعر افغانی ممتاز عصر بود نیز ظاهرا معلوم میگردد که در دیوان افغانی خود آورده است -

عرش پورے او وائی هر چا چه زهٔ نزدے کړم (نو) نزدے دِ کړی الله تعالیٰ دهٔ لره (خپل ځان ته) او هر چا چه زهٔ پرے کړم پرے دِ کړی دهٔ لره الله تعالیٰ (له خپل ځانه) ))۔ او دغسے د سعید ابن زید نه روایت دے چه نبی کریم صلی‌الله علیه وسلم فرمائیلی دی ((خپلولی یو ښاخ دے د طوف د الله تعالیٰ نه پس هر چا چه دا ښاخ پرے کړو نو حرام به کړی الله تعالیٰ په دهٔ باندے جنت))۔ او شاهی خېل او کوته خېل یوه قبیله شوی دی چه دواړه دولت خېل دی ـ او په دوئی کښے د دولت اولاد ته ځان له هم دولت خېل وائی۔ او دولت او ملا خېل بیل بیل بدل ته رسی۔ او بدل‌زی د بړیځ په اولاد کښے حسابیږی۔ او بړیځ، شیرانی، میانی، ترین او امرودین د ارسړ د اولاد نه دی دا پینځه واړه د شرف‌الدین ځامن دی ـ او شرف‌الدین او خیرالدین دواړه د سړبن ځامن دی۔ او سړبن، بیټن او غورغشت درے واړه د قیس عبدالرشید ځامن دی۔ او هغه چه په دے وخت کښے ورته په فارسی کښے افغان، په هندئی کښے پټهان او په پښتو کښے پښتون وائی ـ د دے دریو نوغو نه بهر نهٔ دی۔ یا به دے د سړبن د اولاد نه وی یا د بیټن او یا د غورغشت، چنانچه عمدة‌الخوانین خوشحال خان خټک چه د فنونو او فضائلو کان وو د هر علم ماهر وو او په تاریخ دانئ او پوهه کښے باکمال او په شعر و شاعرئ کښے لاثانی وو د هغهٔ په دیوان کښے یوه رباعی موجوده ده چه دا حقیقت ترے صفا ښکاره کیږی۔

بیت

پښتون په اصل سړه بنی دے　　بل غور غشتی دے بل بیټنی دے

لودی غلجی دے د بیټ له لوره　　په سره بن پورے بیا کرلانی دے

یعنی جمیع اقـوام افغـانان ازین سـه قسم بیرون نباشنـد و آنچه خانموصوف گفته است ـ چه :　　په سره بن پورے بیا کرلانی دے

این ازینجا گفته که کرلانی پسر خوانده اولاد سړه بن است و زوجه وی نیز از قوم سړه بن است بنا بران کرلانی را د ر ضمن سړه بن آورده بدو ملحق گردانید و لودی و غلجی داخل قوم بیټنی اند زیراکه ایشان هر دو قوم اولاد دختر بیټن اند ـ پس ایشان نیز در بیټنی داخل شده محسوب گشتند ـ چنانچه تفصیل بیـان هر یکی از ایشان در محل و مقام خود ایراد خواهد یافت ـ

مخفی نماند که قیس عبدالرشید که از جناب رسالت پناه صلی‌الله علیه وسلم بعبدالرشید ملقب شده است از بنی اسرائیل است خاصه از اولاد ملک طالوت که بادشاه بنی اسرائیل بود که بیان پادشاهی او کرده میشود ـ بنی اسرائیل را ازان سبب بنی اسرائیل میگویند که ایشان اولاد اسرائیل اند و اسرائیل نام حضرت یعقوب است ـ این حضرت اسحاق ابن حضرت ابراهیم خلیل‌الله صلوات‌الله علی نبینا وعلیهما و حضرت اسماعیل که عرب حجازی چنانچه قریش وغیره از نسل وی

## رباعی

پښتون په اصل سړبني دے بل غورغښتے تے بل بيټنے دے
لودی غلجي دی د بيټ له لوره په سړه بن پورے بيا کرلانړ دے

يعني واړه پښتون اولس د دے درېو تبرو نه بهر نۀ دے ـ او لکه چه خان موصوف فرمائيلی دی چه: په سړبن پورے بيا کرلانړے دے۔ دا ئے له دے کبله وئيلی دی چه کرلانړے د سړبن کورنۍ په خوی قولۍ منلے وو ـ او د هغۀ ارتينه هم سړبنۍ وه۔ له دے کبله ئے کرلانړی د سړبن په ضمن کښے راوړی دی او د هغوئ سره تړلی شوی دی۔ او لوديان او غلجيان په بيټنو داخل دی۔ ځکه چه دا دواړه قبيلے د بيټن د لور اولاد گڼړلے شی۔ ځکه دوئ هم په بيټنو حساب دی۔ د دوئ تفصيلی بيان به په خپله خپله موقع راشی۔

حقيقت دا دے چه قيس عبدالرشيد هرکله د رسالت پناه صلی الله عليه وسلم د حضور نه عبدالرشيد لقب موندے دے نسلاً د بنی اسرائيل خاص د ملک طالوت اولاد دے۔ چه هغه د بنی اسرائيلو بادشاه وو ـ د هغۀ د دور حکومت بيان څه داسے کيږی ـ وائی چه بنی اسرائيلو ته په دے وجه بنی اسرائيل وئيلے شی چه دوئ د اسرائيل اولاد دے۔ او اسرائيل د حضرت يعقوب عليه‌السلام نوم دے چه هغه د اسحاق عليه‌السلام ځوے وو او اسحاق ځوے د إبراهيم عليه‌السلام وو ـ او حضرت اسمعيل چه د حجاز عرب ئے د نسل نه

و حضرت اسحاق که جمیع بنی اسرائیل از نسل وی اند هر دو فرزندان حضرت ابراهیم اند صلوات‌الله علی نبینا و علیهما و حضرت یعقوب ابن حضرت اسحاق را ازان سبب اسرائیل میگفتند که اسر بزبان عبری برگزیده خدا را میگویند و عندالبعضی بنده خدا را و ایل بمعنی الله پس مرکب بمعنای عبدالله است مخفی نماند که الله تعالی طالوت را بملک یاد نموده است ـ قال‌الله تعالی إِذْ قَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوْتَ مَلِكًا ـ بنا بران تا ازان وقت تا الحال سردار افغانانرا ملک میگویند ـ

آورده اند که طالوت مردی بود در بنی اسرائیل خاصه در اولاد بن یامین برادر حقیقی حضرت یوسف علیه‌السلام که چندان مال و دولت نداشت پس درانوقت که بنی اسرائیل بعد مرور ایام در دور حضرت اشموئیل علیه‌السلام از حضرت اشموئیل علیه‌السلام که پیغمبر ایشان بود درخواست نمود که بجهة مایان بادشاهی مقرر فرمایند تا به حسب صلاح و امروی با کافران جنگ و غزا نمائیم ـ أَلَمْ تَرَ إِلَى الْمَلَاءِ مِنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ مِنْ بَعْدِ مُوسٰى إِذْ قَالُوْا لِنَبِيٍّ لَّهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ و بر ضمایر ذوی البصایر مخفی نماند

دی هم د حضرت ابراهیم علیه‌السلام ځوئے وو۔ او حضرت یعقوب علیه‌السلام چه د حضرت اسحاق علیه‌السلام ځوئے وو هغهٔ ته په دے سبب اسرائیل وائی چه اسر په عبرانی کښے د خدائے نازولی ته وئیلے کیږی او د بعضو په نزد د "خدائے بنده،، ته وائی۔ او ایل په عبرانی د الله په معنیٰ راوړے شی۔ پس د اسرائیل معنیٰ عبدالله را اوځی۔

وائی چه الله تعالیٰ طالوت په ملک نوم یاد کړے دے۔ ارشاد باری دے ((کوم وخت چه ووئیل دوئی ته پیغمبر خپل بیشکه الله تعالیٰ مقرر کړے دے تاسو د پاره طالوت ملک (بادشاه) )) له دے کبله د هغه وخته راسے پښتنو سردارانو ته ملک ویلے کیږی۔ وائی چه طالوت په بنی اسرائیلو کښے خاص د بن یامین په اولاد کښے یو سړے وو۔ او بن یامین د حضرت یوسف علیه‌السلام حقیقی ورور وو چه دومره ډیر مال دولت ئے نهٔ وو۔ د حضرت اشمونیل علیه‌السلام په زمانه چه هرکله بنی اسرائیلو هغهٔ ته خواست اوکړو چه زمونږ د پاره یو بادشاه مقرر کړه چه د هغهٔ په صلاح او حکم مونږه د کفارو سره غزا او جهاد اوکړو۔ ((آیا ته نهٔ گورے یو ټولی د بنی اسرائیلو ته، پس له موسیٰ علیه‌السلام نه، چه کوم وخت اووئیل دوئی خپل پیغمبر علیه‌السلام ته مقرر (غوره) کړه تهٔ مونږ له یو بادشاه چه جنګ وکړو مونږ (په ماتحتیٔ د هغهٔ کښے) په لاره د الله تعالیٰ کښے)) او صاحب نظر خلق په دے پوهیږی چه هغه پیغمبران چه

پیغمبر اینکه اولوالعزم بودند ، اگر اطلاق سلطنت بر ایشان نشده اما صاحب حکم و اولوالامر بودند حاجت بادشاهِ دیگر نداشتند حقیقتاً خود پادشاهان بودند چنانچه رسول مقبول صلی‌الله علیه وسلم و حضرت موسیٰ و غیرهم صلواةالله علیٰ نبینا و علیهما و انبیاء دیگر صلوات الله وسلامه علیهم که سوای اولوا العزم بودند و مامور بجنگ و غزا نبودند قوم و گروهِ ایشان را پادشاه می بائیست تا حسب‌الامور و صلاح وی باکافران جنگ و غزا میکردند۔ چنانچه بنی اسرائیل از حضرت اشموئیل علیه‌السلام پادشاه طلب کرده حضرت اشموئیل طالوت را پادشاه بنی اسرائیل مقرر نمودند ایشانرا تابع طالوت ساخت ۔ تا بعد ازان بنی اسرائیل بجنگ و غزاِ کافران مشغول شدند ۔

القصه حضرت اشموئیل مر بنی اسرائیل را گفت که طالوت را پادشاه شمایان گردانیدم چرا که الله تعالی ویرا پادشاه شمایان ساخته است ، قال‌الله تعالیٰ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكاً بنی اسرائیل را از پادشاه کردنِ طالوت عار آمده ظاهر نمودند که طالوت مردی مفلس است و مایان هر آینه ازو احق و بهتریم قال‌الله تعالیٰ وَنَحْنُ أَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِنَ الْمَالِ آخرالامر حضرت اشموئیل بنی اسرائیل را رضامند ساخته مطیع و فرمانبردار طالوت

اولوالعزم وو که هغوئی د حکومت او سلطنت اختیار نهٔ وو تر لاسه کړے خو بیا هم د بل بادشاه حاجت ئے نهٔ لرلو۔ په حقیقیت کښے هغوئی پخپله بادشاهان وو۔ چنانچه رسول مقبول صلعم او حضرت موسیٰ علیه‌السلام او داسے نور برگزیده پیغمبران چه وُو۔ او هغه انبیاء علیهم‌السلام چه د دوئی نه علاوه وُو او په جنګ او غزا کولو مامور کړی شوی نهٔ وُو د هغوئی قوم یا ډلے ته به بادشاه پکار وو چه د هغهٔ په صلاح او حکم به ئے د کفارو سره جنګونه او غزاگانے کولے۔ چنانچه بنی اسرائیلو د حضرت اشموئیل علیه‌السلام نه د ځان د پاره بادشاه اوغوښت او حضرت اشموئیل علیه‌السلام طالوت په دوئی بادشاه مقرر کړو ۔ او د دے نه پس بنی اسرائیلو د کفارو سره جنګونه او غزاگانے اوکړے ۔

لنډه دا چه اشموئیل علیه‌السلام بنی اسرائیلو ته اووے چه طالوت مے ستاسو بادشاه کړو ځکه چه خدائے تعالیٰ هغه ستاسو بادشاه کړے دے فرمائیلی دی الله تعالیٰ ((او کوم وخت چه اووئیل دوئی ته پیغمبر علیه‌السلام خپل بیشکه الله تعالیٰ مقرر کړے دے ستاسو د پاره طالوت ملک (بادشاه) )) بنی اسرائیل د طالوت په بادشاه کیدو شرمیدل او اوئے وے چه طالوت خوار مفلس سړے دے او مونږه په هر جوړ د هغهٔ نه غوره او بهتر یُو ۔ (( فرمائی الله تعالیٰ (چه دوئی خپل پیغمبر علیه‌السلام ته دا جواب ورکړو) او مونږه زیات حقدار یُو د بادشاهئ (ولے چه) نیشته دهٔ سره مال )) آخر حضرت اشموئیل بنی اسرائیل په څه جوړ رضا کړل او هغوئی د طالوت

نمود ـ چنانچه ایشان پادشاهی طالوت را قبول نموده همراه وی بجنگ و غزاء پادشاهی کافر جالوت نام بدر آمده با او محاربه نمودند ـ چنانچه تفصیل این قصه در قرآن مجید بسیار آمده است آخرش طالوت دران وقت ظاهر نموده وعده پیمان کرد که از دست هر کسی که جالوت کشته شود نصف مملکت و دختر خود بدو عطا خواهم کرد تا عاقبت الامر جالوت از دست حضرت داؤد علیه السلام کشته شد ـ قال الله تعالیٰ وَقَتَلَ دَاوُدُ جَالُوْتَ وَ اٰتٰـهُ اللهُ الْمُلْکَ وَالْحِکْمَةَ وَعَلَّمَهٗ مِمَّا یَشَآءُ و پس طالوت بنا بر وفاء وعده دختر خود را بحضرت داؤد علیه السلام داده و از عطاء نصف مملکت عدول نموده از قول و وعده خود بازگشت بلکه علاوه بران خواهانِ کشتن وی گردید سوای آن ظلم و تعدی بر مردم شربا نیز نهاده میرنجانید و بنا حق میکشت تا آن وقت که نقل است که طالوت روزی بشکار بیرون آمده بود ناگاه برسر قبر رسید که زنی نزدیک وی نشته میگریست چون طالوت را بران زن نظر واقع شده از حالش استفسار نمود از موجبانش پرسید زن مذکور ظاهر نمود که صاحب این تربت شوهر من است و در حالِ حیات خود شیوه صیادی میکرد و از هر گونه صیدها میگشت و می آورد الحال که ازین عالم فانی بدار باقی نقل نموده

بادشاهۍ منلو ته غاړه کېښوه او د هغهٔ سره د يو بل کافر بادشاه جالوت غزا له لاړل او جنګونه ئې ورسره اوکړل- چه د دے واقعاتو تفصل په قرآن مجيد کښې ډېر راغلي دے- آخر طالوت په دغه موقع اوويل چه زهٔ دا وعده کوم چه هغه څوک چه جالوت مړ کړی هغهٔ له به خپله لور او نيمه باچائي ورکوم - د خدائے کارونه وو چه جالوت د حضرت داؤد عليه‌السلام د لاسه قتل شو - الله تعالىٰ فرمائيلي دی (( او قتل کړو داؤد جالوت لره او ورکړه دهٔ لره الله تعالىٰ بادشاهي او حکمت او وښودل هغهٔ ته د هغه کارونو نه چه څه ئے خوښ وو)) او د خپلې وعدے مطابق طالوت خپله لور داؤد عليه‌السلام ته ورکړه خو د نيمې بادشاهۍ وعده ئې تر سره نهٔ کړه- لا د هغهٔ د وژلو تابيا ئې هم شروع کړه او د دے نه علاوه ئې په غريبو خلقو زور زياتے هم راواغيست او خپله رعايا به ئې تنګوله او په ناحقه به ئې وژلل تر هغې چه يوه ورځ طالوت په ښکار وتلے وو ناګهانه په يو قبر ورپيښ شو چه يو ښځه ئې په خوا کښې ناسته وه او ژړل ئې- هر کله چه د طالوت په هغه ښځه سترګې پرېوتے او تپوس ئې ترے اوکړو چه ولے ژاړے نو هغې ښځې ورته اوويل چه په دے قبر کښې زما خاوند ښخ دے- دهٔ به په ژوندانهٔ ښکارونه کول او هم دغه ئې کسب کړے وو- او د ښکار يو څيز به ئې نهٔ پرېښوو- اوس چه دے مړ شوے دے او بلے دنيا ته ئې سفر کړيدے

معلوم اینجانب گردیده که بسبب آن صیدها که میکرد و میکشت بعذاب الهی گرفتار آمده است پس گریه من درینجا محض ازان سبب است ـ چون طالوت را این سخن ازان زن بگوش هوش رسید از خود متوحش گردیده در خاطر اندیشید که آیا کسی که قاتلِ مباح الدّم بود او را این حالت در پیش رسیده است و منکه قاتل محقون الدم هستم و همیشه ایشانرا بنا حق میکشم پس سزائی من چه خواهد بود بمجرد مرور این اندیشه در خاطر متنبه شده نادم گشت و بمزار شریف حضرت اشموئیل علیه السلام رفته گریه و زاری اغاز نهاده تائیب و مستغفر گشت خبر است که قبر حضرت اشموئیل علیه السلام بشگافت ووی ازان قبر برخاسته با ملک طالوت در سخن آمده گفت ای طالوت الله تعالیٰ با شما فضل خود نموده مهربانی کرد تا از مذلت براحت و از مسکنت بسلطنت رسانید و بنی اسرائیل که اطاعت شما قبول نمی نمودند و فرمان بردار شما نمی شدند بس بسعی و کوشش خود ایشانرا رضامند ساخته مطیع شما گردانیدم و تابع تو ساختم و تو این چه کار هائی شنیعه در پیش گرفتی اکنون مغفرت میخواهی که خود معه فرزندان که جمیع ده کسی اند بغزاء کفار متوجه شوید و جنگ نمائید تا آن وقتیکه همه شهید شوید که توبه شما اینست بعد ازان الله تعالیٰ ترا خواهد بخشید ـ

القصه طالوت بقصد غزا ازان جابر گشته آمده

نو ما ته دا معلومه شوے ده چه د هغے آزار په سبب د خدائے په عذاب کښے گرفتار دے. او په دے وجه ژاړم هرکله چه طالوت د هغے ښځے دغه خبرے واورېدے نو فکرمند شو ویره ورسره پیدا شوه چه هغه څوک چه د حلال ښکار په کولو دومره عذابېدے شی نو زۀ چه بے گناه خلق ازاروم او خونونه مے په غاړه کېږی زما به لا په هغه جهان کښے څه حال وی ـ او هم د دے فکر په راولاړېدو ئے تکه اوخوړه ډېر نادم شو او د حضرت اشموئیل مزار له لاړو هلته ئے گریه و زاری او ژړا انگولا اغازه کړه او توبه گار استعفار شو ـ

وائی چه د حضرت اشموئیل علیه‌السلام قبر اوچاؤدو او هغه ترے رابهر شو او د ملک طالوت سره ئے خبرے اوکړے او ورته ئے اوویل چه اے طالوت الله تعالیٰ په تا خپل فضل اوکړو په خپله مهربانئ ئے تۀ د خوارئ او عاجزئ نه تر بادشاهئ سلطانئ اورسولے او ټول سرکش بنی اسرائیل دِ مطیع او فرمانبردار شول. او ټول مے د حکم او فرمان لاندے کړل نو تا دا څه ناروا چارے راواغښتے ـ که د مغفرت امېدوار ئے نو تۀ سره د خپلو ځامنو چه ټول لس کسان دی په کفارو پسے غزا له لاړ شئ او جنگونه ورسره کوئ تر هغے وخته چه لس واړه شهیدان شئ بس هم دغه به ستاسو توبه وی. او پس له هغے به دِ الله تعالیٰ اوبخښی.

لنډه دا چه طالوت د غزا په نیت د هغه ځایه راروان شو ـ

حضرت داؤد علیه‌السلام را طلب کرده تسلیم پادشاهی بدو نموده تهنیت و مبارکبادی داد و در آخر آن وصیت کرده گفت که مارا قصد جهاد مصمم شده میروم اما دو منکوحهٔ من حامله اند ـ فرزندانی که از آنها متولد شوند میباید که تربیت آنها بجا آری حضرت داؤد وصیت وی قبول نموده منظور داشت ـ بعد ازان ملک طالوت معه فرزندان خود ازان جا روانه شده بغزاء کافران مشغول گشت ـ چنانچه در مدت چهل روز همه یازده کس شهید شدند آخرالامر بعد ازان از هر دو منکوحهٔ ملک طالوت یکیک فرزند بوجود آمد حضرت داؤد علیه‌السلام بموجب وصیتِ ملک طالوت تربیت ایشان می نمود و یکی را نام ارمیانهاد و دیگر یرا نام برخیا کرد و چون ارمیا و برخیا هر دو بالغ شده متاهل گشتند ایشانرا نیز فرزندان بوجود آمدند چنانچه ارمیا فرزند خود را نام افغان نهاد و برخیا نام فرزند خود آصف کرد پس چون که دور حضرت داؤد علیه‌السلام منقضی شده و دور سلطنت حضرت سلیمان علیه‌السلام آمد حضرت سلیمان آصف را وزیر خود نموده افغان را سپه سالار داشت ـ

گویند که جن هم تابع افغان بودند و باقی امور مملکت ، انتظام سلطنت نیز بر هر دو ایشان متعلق بود بعد ازان اولاد افغان در کوه سلیمان ساکن گشته بدینِ اسلام قایم و ثابت بودند تا آن وقتی که حضرت رسول مقبول صلی‌الله علیه وسلم مبعوث شده ایشان در آنجا بودند بناء علی هذا مردم افغانان را در عربستان سلیمانی میگویند ـ

حضرت داؤد علیه‌السلام ته راؤبلو بادشاهی ته وزحواله کړه او ورته ئې اووے سونړه د جهاد اراده کړے ده او زما دوه ارتینې حامله دی که ځامن ئې اوشول د هغوئ تربیت په ښهٔ شان اوکړه ـ حضرت داؤد علیه‌السلام د هغهٔ وصیت اومنو او د هغې نه پس ملک طالوت سره د خپلو ځامنو په غزا پسے اووت او د کافرانو سره په جنګونو مشغول شو ـ چنانچه په څلوېښت ورځو کښې ټول یوولس واړه شهیدان شول آخر څه موده پس د طالوت د دواړو ښځو یو یو ځوے اوشو ـ حضرت داؤد علیه‌السلام د ملک طالوت د وصیت مطابق د هغوئ تربیت په ښهٔ شان کوو او د یو نوم ئې ارمیا او د بل نوم برخیا کېښود ـ او هرکله چه ارمیا او برخیا دواړه زلمی شول او ودونه ئې اوکړل نو د دوئ هم ځامن پیدا شول چنانچه ارمیا د خپل ځوی نوم افغان کېښود ـ او برخیا په خپل ځوی آصف نوم کړو ـ او هرکله چه په حضرت داؤد پسے د حضرت سلیمان علیه‌السلام بادشاهی شوه ـ حضرت سلیمان آصف خپل وزیر مقرر کړو او افغان ئې سپه سالار کړو ـ

وائی چه پیریان هم د افغان مطیع وو ـ او د حکومت نور کار و بار به هم دے دواړو به شریکه چلوو ـ څه زمانه پس د افغان اولاد په کوه سلیمان کښې میشته شو او په اسلام باندے تل ټلک ولاړ وو ـ تر هغې وخته چه حضرت رسول مقبول صلی‌الله علیه وسلم دے دنیا ته تشریف راوړو ـ دوئ لا هم هغلته دیره وو ـ له دے کبله پښتنو ته په عربستان کښې سلیمانی ویلے کیږی ـ

گویند که هر گاه لمعان انوار نور محمدی در جهان منتشر شده قیس نام سردار که از جمله اولاد افغان بود با جمیع هفتاد کس بقصد ملازمت فیض موهبتِ آن خیرالبشر روانه شده در خاطر جزم کرد که اگر فی‌الواقع آن رسول آخرالزمان باشد که اوصاف وی در توریت و انجیل دیده و خوانده شده است هر آینه ایمان بدو خواهیم آورد ـ

القصه چون قیس وغیره بشرف ملازمت آن رسالت پناه فیض اندوز شده همگی ایشانرا اطمینان خاطر بدو شده بشرف اسلام مشرف گشتند و ایمان بوی آوردند ـ چون بعد ازان از جناب رسالت مرخص شده بخانهٔ خود ها رفتند جمله قوم خود را از ظهور نور محمدی و ایمان آوردن خود بروی مطلع ساختند تا ایشان نیز همگی بیکبارگی غایبانه بدو ایمان آورد و بشرف اسلام مشرف گشتند و ایشان در اصل نیز همه مسلمانان بودند ـ چنانچه پیغمبران و بادشاهان از ایشان در ایشان پیدا می گشتند ـ قال‌الله تعالیٰ وَاِذْ قَالَ مُوْسیٰ لِقَوْمِهٖ یٰاَ قَوْمِ اذْکُرُوْا نِعْمَةَاللهِ عَلَیْکُمْ اِذْ جَعَلَ فِیْکُمْ اَنْبِیَاۤءَ وَجَعَلَ لَکُمْ مُلُوْکاً وَّآتٰکُمْ مَّا لَمْ یُؤْتِ اَحَداً مِّنَ الْعَالَمِیْنَ ازین سبب که رسولان مختص برای تبلیغ احکام شرعی اند ـ قال‌الله تعالیٰ وما علی الرّسول الاّ البلاغ و

وائی چه کله د نورِ محمدی په پلوشو دنیا منوره شوه نو
قیس نومے د افغانانو یو سردار سره د اویا کسه نورو ملګرو د حضور
صلی‌الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شول او اراده ئے اوکړه
که چرے هغه ریښتیا د خدائے آخری پیغمبر وی چه د هغهٔ تول
اوصاف په تورات او انجیل کښے مونږ لیدلی او اورېدلی دی نو
بے شکه چه مونږ به پرے ایمان راوړو۔

لنډه دا چه هرکله چه قیس و غیره د حضور صلی‌الله علیه وسلم
په خدمت کښے حاضر شول نو د ټولو تسلی اوشوه او یقین ئے راغے
چه هم دا هغه آخری نبی دے او په جمع ئے پرے ایمان راوړو۔
او چه د دربار نبوی صلی‌الله علیه وسلم نه ئے رخصت اغیستو نو
ټول د ایمان په نور فیض یاب شوی وو۔ او څه وخت چه خپل قوم
ته بیرته راغلل نو هغوئی هم د دوئی په تصدیق ټول مسلمانان شول
او غایبانه ایمان ئے راوړو۔ او دوئی په اصل کښے ټول د پښوا
راسے مسلمانان وو چنانچه پیغمبران او بادشاهان په دوئی کښے مسلسل
پیدا کیدی۔ الله تعالیٰ فرمائیلی دی ((او کوم وخت چه اوویل
موسیٰ علیه‌السلام خپل قوم ته اے قومه یاد کړئ تاسو نعمتونه د
الله تعالیٰ چه جوړ ئے کړل په تاسو کښے نبیان او بادشاهان او
درکړی ئے دی تاسو له هغه نعمتونه چه نهٔ ئے دی ورکړی بل چا ته
(په خپله زمانه کښے))) او هرکله چه رسولان د شرعی احکامو په
تبلیغ مامور وی الله تعالیٰ فرمائیلی دی وما علی‌الرسول الاالبلاغ او

پادشاهان جهت ابوای احکام اسلام و انتظام امور عباد هستند۔ قال رسول‌الله اَلْمُلْکُ وَالنُّبُوَّۃُ تواامان نزد خرد شاهی و پیغمبری چون دو نگین اند یک انگشتری و کتب سماوی بر ایشان نیز نازل میشد۔ قال‌الله تعالیٰ وَلَقَدْ آتَیْنَا بَنِیْ اِسْرَائِیْلَ الْکِتٰبَ وَالْحُکْمَ وَالنُّبُوَّۃَ وَرَزَقْنَاهُمْ مِّنَ الطَّیِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَی الْعَالَمِیْنَ۔ و فرزندان حضرت یعقوب علیه‌السلام که جملهٔ دوازده کس بودند چنانچه حضرت یوسف وغیره همه پیغمبران بودند و حضرت موسیٰ و حضرت هارون و حضرت داؤد و حضرت سلیمان و حضرت عیسیٰ و حضرت زکریا و حضرت یحییٰ علیهم‌السلام و غیر از ایشان در بنی اسرائیل بسیار مبعوث گردیده اند چنانچه جمیع یک لک و بیست چهار هزار کم زیاده انبیاء پیدا شده اند گویند که ازان جمله هفتاد هزار انبیاء در بنی اسرائیل بودند۔

الغرض که قیس مذکور معه جمیع قوم خود بحضرت رسالت پناه صلی‌الله علیه وسلم ایمان آورده بشرف اسلام مشرف گشتند و قیس را ازان جناب والا لقب عبدالرشید شده چنانچه ایشان اکثر اوقات در حضور پرنور حاضر می بودند و جنگ و غزا میکردند۔

گویند که در فتح مکه معظمه نیز ایشان بودند چنانکه قدوۃ‌العارفین

بادشاهان د اسلامی احکامو او اولسی او معاشرتی معاملاتو په انتظام
او چلولو مامور وی۔ لکه رسول کریم صلی‌الله علیه وسلم فرمائی چه
((بادشاهی او نبوت دوه غمی دی (په یوه ګوته کښې) ))۔ او نبوت
او بادشاهی په یوه ګوته کښې په مثال د دؤو غمو دی او اسمانی
صحیفې او کتابونه په دوئی نازلېدل۔ الله تعالیٰ فرمائی ((او په تحقیق
ورکړی وُو مونږه بنی اسرائیلو ته کتاب (توراة) او بادشاهی او
نبوت او روزی کړی وُو مونږه د دوئی پاک څیزونه او بهتر کړی
وُو مونږه دوئی په نور مخلوق (د خپلے زمانے) باندے)) او د حضرت
یعقوب[ع] دولس وارہ ځامن چنانچه حضرت یوسف[ع] او نور ټول پیغمبران
وُو. او حضرت موسیٰ ، حضرت هارون ، حضرت داؤد ، حضرت سلیمان،
حضرت عیسیٰ حضرت ذکریا ، حضرت یحییٰ علیهم‌السلام او نور ډیر
پیغمبران په بنی‌اسرائیلو کښې مبعوث کړی شوی دی۔ چنانچه ټول یو لک
څلیریشت زره زیات و کم پیغمبران یادیږی ۔ وائی چه په دوئی کښې
اویا زره پیغمبران په بنی اسرائیلو کښے راغلی وُو۔

الغرض قیس عبدالرشید سره د خپل ټول اولس په حضرت رسالت
پناه صلی‌الله علیه وسلم ایمان راوړو او په اسلام مشرف شول۔ او قیس
ته د حضور نبی کریم صلی‌الله علیه وسلم له جانب د عبدالرشید لقب
ورعطا کړے شو۔ چنانچه هغه به اکثر د حضور په دربار کښې
حاضر وو۔ او په جنګونو او غزاګانو کښې به شامل وو۔

وائی چه د مکے معظمے د فتحے په موقع هم دے موجود وو۔

عمدة‌المحققین اسوة‌السالکین اخوند درویزه قدس‌الله سره در تذکرة‌الابرار والاشرار خود آورده که مستورات افغانان در جنگ و غزا نیز حاضر گشتندی با غازیان آب رسانیدندی و تیرها گرد آوردندی و هر چند که ایشان مامور بستر بودند اما رسول مقبول صلی‌الله علیه وسلم جهت امداد غازیان منع ایشان نه فرمودی و نیز در تواریخ مسطور است که بتان که اکنون بتغیر السنه و مرور از منه به پٹان اشتهار دارد نیز از جناب رسالت پناه صلی‌الله علیه وسلم خطاب بقیس عبدالرشید است و بتان در اصل تخته زیر جهاز را میگویند که بنای جهاز بران مرتب باشد و درینجا مراد از خطاب بتان اینست که بنای تقویت اسلام بر شما و اولاد شما خواهد بود و این هیچ غریب و بعید نیست اگر بر زبان گوهرفشان آن حضرت رفته باشد زیرا که اگر چه بنی اسرائیل در شرافت با عرب برابر نیستند عرب بهتر و افضل اند ازان سبب که حضرت خیرالبشر افضل همه مخلوقات است چنانچه جمیع انبیاء و اولیاء و عرش و کرسی و سملوات و اراضی و ما فیها از روی ایشان پیدا شده اند - چنانچه گفته است -

بیت

نچه اول شد پدید از جیب غیب — بود نور جان او بی هیچ ریب

عد ازان آن نور مطلق زد علم — گشت عرش و کرسی و لوح و قلم

قدوة العارفین عمدة المحققین اسوة السالکین اخوند درویزه قدس‌الله سره
په تذکرة الابرار والاشرار کښې لیکلی دی چه پښتنې میرمنې به په
جنګونو او غزاګانو کښې هم حاضرې وې۔ او غازیانو له به ئې
اوبه ورکولې او په میدان جنګ کښې به ئې غشی راټولول او که
څه هم دوئ ستروندې وې خو رسول مقبول صلی‌الله علیه وسلم به
د غازیانو د امداد د خاطره په دوئ پابندی نهٔ کښوه او په ځینو
تواریخو کښې ئې دا هم راوړی دی چه بټان چه د تلفظ او لهجې
په بدلون اوس پټهان مشهور شوې دې دا هم د جناب رسالت مآب
صلی‌الله علیه وسلم له خوا د قیس عبدالرشید خطاب وو۔ او بټان په
اصل کښې د جهاز هغه لاندینئ تختې ته وائی چه د جهاز ادانره
پرې اودرولې کیږی او ټول جهاز پرې راټینګ وی۔ او دلته د دې
خطاب نه مراد دا وو چه د اسلام د تقویت بناء په دهٔ او د دهٔ په
اولاد باندې ده*۔ او دا څه عجیبه یا نا اشنا خبره نهٔ وه۔ که د
آنحضرت په فرموداتو کښې دا راغلی وی۔ ځکه چه که څه هم
بنی اسرائیل په نسبی شرافت کښې د عربو ساری نهٔ دی او عرب
ترې په دې غوره او افضل دی چه حضرت خیرالبشر د کونینو
سردار محمد مصطفیٰ صلی‌الله علیه وسلم چه په ټول مخلوقات کښې
افضل دے او واړه انبیا او رسولان، اولیاءالله ، عرش کرسی او زمکے
اسمانونه او څه چه په دوئ کښې دی ټول د پاک حضرت له مخه
پیدا دی۔ بیت

آنچه اول شد پدید از جیب غیب   بود نور جان او بی هیچ ریب
بعد از آن نور مطلق زد علم   گشت عرش و کرسی و لوح و قلم

---

*فطرت کے مقاصد کی کرتا ہے نگہبانی   یا بندۂ صحرائی یا مرد کہستانی

کما جاء فی حدیث القدسی لَوْلَاکَ لَمَا خَلَقْتُ الْاَفْلَاکَ پس همچنین قوم آن حضرت نیز بهترین اقوام است کما حکی عن النبی علیه الصلوة والسلام اَلْعَرَبُ خَیْرُ النَّاسِ ثُمَّ خَیْرُهُمْ مُحَمَّدٌ فَهُوَ فِیهِمْ خَیْرُهُمْ

اما ما ورای عرب مر بنی اسرائیل را نیز الله تعالی شرافتی داده چنانچه در کلام مجید جا بجا بیان احوال ایشان فرموده است و چند مقام بنهادن بار منت مخاطب نموده قال الله تعالی یَا بَنِیْ اِسْرَائِیْلَ اذْکُرُوْا نِعْمَتِیَ الَّتِیْ اَنْعَمْتُ عَلَیْکُمْ وَ اَنِّیْ فَضَّلْتُکُمْ عَلَی الْعَالَمِیْنَ۔ و نیز دین را گاهی ایشان از دست نداده از اصل پشت در پشت اکثر مسلمانان آمده اند و امورات عجیبه و کارهای نادره از ایشان صادر شده که یکی ازان اینست که

چون فرعون بر ایشان ظلم و تعدی بسیار آورد تمامی بنی اسرائیل را غلامان ساخت و اطفال ایشانرا قتل مینمود کما قوله تعالی وَ اِذْ نَجَّیْنَاکُمْ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ یَسُوْمُوْنَکُمْ سُوْءَ الْعَذَابِ یُذَبِّحُوْنَ اَبْنَاءَکُمْ وَ یَسْتَحْیُوْنَ نِسَاءَکُمْ وَ فِیْ ذٰلِکُمْ بَلَاءٌ مِّنْ رَّبِّکُمْ عَظِیْمٌ ما بنی اسرائیل همه آن سختیان را قبول کرده اسلام را از دست دادند تا آن وقتیکه حضرت موسیٰ و حضرت هارون در ایشان مبعوث

په حدیث قدسی کښې ارشاد دے چه ((که نۀ وے تۀ نو نۀ به وو پیدا کړی ما آسمانونه (کائنات))) پس دغه رنګ د آنحضرت امت هم په نورو امتونو بهتر او افضل دے۔ لکه حضرت پاک نه راوړی شوی دی چه ((عرب بهتر په خلقو دی بیا محمد (صلعم) بهتر د دوئ دے پس دے په دوئ کښې بهتر د بهترو د دوئ نه دے)) خو د عربو نه علاوه بنی اسرائیلو ته هم الله تعالیٰ شرف وربخښلے دے۔ چنانچه په کلام مجید کښې ځائے په ځائے د دوئ ذکر موجود دے او یو ځو ځایه ئے په دوئ خپل احسانات هم ذکر کړی دی۔ لکه چه فرمائی ((اے بنی اسرائیلو یاد کړئ تاسو نعمتونه زما۔ هغه چه درکړی دی ما تاسو ته، او بېشکه چه ما بهتر کړی وئی تاسو په (نور) مخلوق (د خپلے زمانے))) او بله دا چه دین دوئ په یو وخت نۀ دے پریښے او په اصل کښې پېړئ په پېړئ دوئ مسلمانان راغلی دی او ناشنا خبرے او عجیبه کارونه د دوئ له لاسه شوی دی۔ چه یو پکښې دا هم دے۔

هر کله چه فرعون په دوئ سخت ظلم شروع کړو او ټول بنی اسرائیل ئے غلامان کړل او هلکان به ئے ورله وژل او جینکئ به ئے پرېښودے۔ لکه چه د الله تعالیٰ ارشاد دے چه ((او یاد کړه هغه وخت چه خلاص کړئ ما تاسو د فرعونیانو نه چه درکول به ئے تاسو ته سخت عذابونه، چه حلالول به ئے ځامن ستاسو او ژوندئ به ئے پرېښودے جینکئ ستاسو او په دے کار کښې یو سخت آزمایش وو (په تاسو) د خپل رب نه))۔ خو بنی اسرائیلو دغه ټولے سختئ په ځان منلے وے او اسلام ئے نۀ پرېښوو۔ تر هغے وخته چه حضرت موسیٰ او حضرت هارون علیهم‌السلام په دوئ کښې مبعوث

شده از طرف الله تعالیٰ ماسور گردیدند شمایان هر دو پیش فرعون رفته بنی اسرائیل را ازو خلاص کنید و ویرا بدین اسلام خوانید کقوله تعالیٰ فَأْتِيَاهُ فَقُوْلَا إِنَّا رَسُوْلَا رَبِّکَ فَأَرْسِلْ مَعَنَا بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ وَلَا تُعَذِّبْهُمْ پس چونکه حضرت موسیٰ و حضرت هارون هر دو پیش فرعون رفته جد و جهد نمودند هیچ فایده نکرد و ایمان بدیشان نیاورد چنانچه تفصیل قصه حضرت موسیٰ علیه‌السلام و فرعون بی عون در قرآن شریف جا بجا آمده است۔

القصه چون حضرت موسیٰ و حضرت هارون بنی اسرائیل را باخود گرفته روان شدند فرعون ازین حال اطلاع یافت۔ بتمامی لشکر خود در پس ایشان روانه شده پس و پیش میرفتند تا بر سر دریا رسیده۔ دریا حضرت موسیٰ علیه‌السلام را راه داده و درمیان خشک گردید و تمامی بنی اسرائیل بحضرت موسیٰ و حضرت هارون علیهما السلام بران راه درگذشتند چون فرعون با تمامی لشکر خود بدان راه در پس ایشان آمد دریا از هر دو طرف موج زده بهم بر آمد و فرعون را با تمامی لشکر غرق گردانید کما قوله تعالیٰ و إِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَأَنْجَيْنَاكُمْ وَ أَغْرَقْنَا آلَ فِرْعَوْنَ وَ أَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ۔ پس هر گاه که فرعون با تمامی لشکر خود غرق شد بنی اسرائیل را الله تعالیٰ از

په خپلو کښې درے کوره دی یو چغرزی، بل نورزی، او دریم دولت زی۔ دولت زی هم درے کوره شوی دی یو مندی زی، بل اسمعیل زی او دریم بارکزی۔ د یوسف دریم ځوے عیسیٰ وو۔ چه اولاد ته ئے عیسیٰ زی ویلے کېږی۔ او د عیسیٰ زو په خپلو کښې هم خپلونه دی خو داسے خاص شهرت نۀ لری څکه دوئی ته په جمع عیسیٰ زی وائی۔ او دا درے واړه قومونه چنانچه الیاس زی عیسیٰ زی او ملے زی په بنېر اباد دی*۔ او په بنېر کښې د اوسېدو د مخه بنېروال یادېږی۔ د یوسف څلورم ځوے بادی وو۔ خو د بادی اولاد ګڼړ شوے نۀ دے څکه په قبیله یا خېل نۀ دی یاد**۔ پنځم ځوے ئے اکو وو۔ د دۀ اولاد ته اکوزی وائی۔ او د اکو دوه ښځے وے یوه رانړئی وه چه اولاد ته ئے رانړی زی وائی۔ دویمه کوره وه، د کوره څلور ځامن وو۔ یو ښادک، چه اولاد ته ئے ښادک زی وائی۔ خو ښادک زی ډېر لږ تبر دے څکه ئے نور خپلونه نېشته۔ دویم ابا وو چه اولاد ته ئے ابازی وائی او ابازی هم ګڼړ نۀ دی نور خپلونه پکښې نۀ دی جوړ شوی۔ دریم بازید چه اولاد ته ئے بائی زی وائی۔ او بائی زی لوئے قوم دے دوی په خپلو کښې پنځه خېله دی یو ابا خېل، بل حاجی خېل دریم موسیٰ خېل، څلورم بابو زی، پنځم متوړی‌زی۔ او من حیث‌المجموع دوئی ته بائی‌زی وائی۔ څلورم خواجو چه اولاد ته ئے خواجوزی وائی۔ او خواجوزی

---

*ملیزی اوس په دیر کوهستان کښې اباد دی۔

**دوئی په راسوړه ضلع دیر کښې اوسی څه کورونه ئے په صوابئی تحصیل کښې هم دی۔

نیز قوم بسیار است درمیان خود هفت خیل دارد یکی الهدین زئی ،
دوم بولازئی، سیوم شامی زئی، چهارم شموزئی، پنجم نیکپی خیل، ششم
ثیبت جوئی (سیبوجنی) و ایشان هر دو فریق در یک دفعه متصل
یاد میشوند چنانچه ایشانرا ثیبت و جوئی میگویند و من حیث المجموع
این اقوام سبعه را خواجوزئی میگویند و ایشان همه اولاد اکو در
ملک سوات و پنج کوڑه مابین سمه و قاشقار سکونت میدارند تا اینجا
بود شجرهٔ اولاد یوسف ابن مندی که مذکور شد -

**بیان اولاد مک ابن خښی ولد کند :** از مک ابن خښی اولاد کم بوجود
آمد هر قدری که هستند آنها را مکه خیل میگویند و مکه خیل، خیل
است در قوم گگیانی و ماسوای قوم مکه خیل جمیع قوم گگیانی اولاد
دختر مکه است که گاگے می نامید - گویند که مک را دختری بود
گاگے نام که آنرا در عقد کارنده معتمد علیه خویش در اورده بود
چون اولاد وی بسیار از وی بوجود آمدند بنام مادر مشهور گردید
که آنها را گگیانی میگویند و گگیانی در اصل سه گروه است- یکی
محمد زئی- که مغل خیل و کنځل خیل هر دو خیلهای وی اند- دوم
عمری که حسن زئی و میرزئی و مندیزئی خیلهای وی اند - سیوم سه
صده که مکه خیل و لاله زئی را من حیث‌المجموع سه صده میگویند-
و سلیمان زئی و مندیزئی و موملی زئی و دولت را من حیث‌المجموع

هم لوئ قوم دے۔ دوئ په خپلو کښے اووه خېلونه دی۔ یو الهٰدین زی، دویم مولازی ، دریم شامی زی ، څلورم شموزی ، پنځم نیکپی خېل، شپږم ثیبت، اووم جونړی۔ چه دوئ دواړه (ثیبت او جونړی) ته شیبوجنی وائی۔ او دے اووۀ واړه قامونو ته په ګډه خواجوزی وائی۔ دا ټول د اکو اولاد دے او په سوات ، پنجکوړه ، سمه او قشقار مېشته دی۔ په دے ځائے د یوسف ابن مندی د اولاد شجره تر سره شوه۔

**د مک ابن خښیے د اولاد بیان :** د خښی ابن کند د ځوی مک اولاد لږ وو۔ هر څومره چه دی په مکه خېلو یادېږی۔ او مکه خېل په ګګیانړو کښے دی۔ د مکه خېلو د قوم نه علاوه د ګګیانړو نور اولس د مکه د لور اولاد دے۔ دے ته به ئے ګاګئ وے۔ ګاګئ د مک لور وه چه خپل یو اعتباری کاردار ته ئے په نکاح کړے وه۔ هرکله چه د هغے ډېر اولاد وو ځکه د خپلے مور په نوم یاد شول. او ګګیانړی ورته وائی۔ ګګیانړی په اصل کښے درے تېرے دی. یو محمد زی چه مغل خېل او کنځل خېل دواړه خېلونه په دے ورګډ دی دریم عمری چه حسن زی، میرزی او مندو زی د دوئ خېلونه دی۔ دریم سه ضده چه مکه خېلو او لاله زو ته په ګډه وائی ۔ او سلېمانزی ، منډیزی ، موسیٰزی او دولت واړه

لاله زئی میگویند و مخفی نماند که چون فرزندان مک کم بوجود آمدند و اولاد دختر مک بسیار شد تغلیبا همه را گگیانی میگویند هکذا فی التذکره اما فی شیرشاهی و خانجهانیه گگیانی ولد شیخ را دو فرزند بوجود آمدند۔ یکی هتک دیگر سیدا و از سیدا سه فرزند شد۔ یکی موکه که اولاد ویرا موکه خیل میگویند۔ دوم لاله که اولاد ویرا لاله زئی میگویند سیوم عمر که اولاد ویرا عمر زئی میگویند و هتک یک فرزند بوجود آمد و آن را محمد زئی میگویند و محمد زئی را چهار فرزند بوجود آمد کهٹوزئی که اولاد ویرا کهٹوزئی میگویند و پنج پای را پنج پای میگویند و اولاد مغل را مغل خیل میگویند و اولاد کنځل را کنځل خیل میگویند و ایشان همه در ملک دوابه مابین شهر پشاور و هشت نگر که بالفعل باشنغر معروف است سکونت میدارند ۔

**بیان اولاد ترکلان ابن خشی ولد کند:** ترکلانی در اصل دو خیل اند یکی محمود که مشهور به ماموند است و ماموند درمیان خود چهار خیل دارند یکی صدین، دوم امدک، سیوم اور، چهارم ککا سه صده و سه صده درمیان خود سه خیل دارد یکی شبه خیل، دوم ائین خیل سیوم اسمعیل زئی و خیلهای هر دو فریق یعنی ماموند و سه صده در میان خود نیز خیلها دارند اما بسبب طوالت مرقوم نشدند و ایشان

لاله‌زی دی. خو هرکله چه د مک ځامن رنګی وُو او د لور اولاد ئے ګنړ شو نو د هغوئ د غلبے له کبله تول په ګګیانړو حساب شول. هم دغه څه په تذکرة‌الابرار ولاشرار کښے لیک دی خو په تاریخ شېرشاهی او په خانجهانی کښے د ګګیانړی ولد شیخے دوه ځامن ښودلی شوی دی، یو هوتک او بل سید، چه د سید درے ځامن وُو. یو موکه، چه نسب ئے په موکه خېل یاد شو. دویم لاله چه اولاد ته ئے لاله زی وائی. دریم عمر چه عمرزی ئے اولاد دے. او د هوتک یو ځوے وو محمد، او د هغهٔ اولاد ته محمدزی ویلے کېږی. او د محمد څلور ځامن وُو، یو کهتو چه نسل ئے کهتو زی دی، بل پنج پائی چه اولاد ته ئے هم پنج پائی ویلے شی. دریم مغل، چه کورنئ ئے په مغل خېلو یادېږی. څلورم کنځل چه اولاد ته ئے کنځل خېل وائی. او دوئ تول په دوابه اباد دی. دوابه د پېښور او اشنغر تر مینځه د علاقے نوم دے او بالفعل د اشنغر حصه ده.

**د ترکلان ابن خښبی اولاد:** د ترکلان ابن خښبی ولد کند د اولاد په اصل کښے دوه خېلونه دی یو د محمود اولاد دے چه ماموند ورته وائی. او ماموند په خپلو کښے څلور خېلونه دی، یو سرین، دویم امدک، دریم اور، څلورم ککا، د ترکلان دویم کور ته سه صده وائی. چه سه صده په خپل مینځ کښے درے خېلونه لری، یو شبه خېل بل ائین خېل او دریم اسمعیل زی او د دواړو فریقو یعنی ماموند او سه صده په خپلو کښے نور خېلونه هم لری. خو د طوالت له کبله پاتے کړے شول.

همه در ملک باجوڑ مابین قاشقار و دوآبه سکونت میدارند تا اینجا بود شجرهٔ اولاد خبنی ابن کند که تحریر شد ۔

**بیان فرزندان زمند ابن خیرالدین ولد سڑہ بن :** از زمند ابن خیرالدین پنج فرزند بوجود آمدند۔ یکی محمدکه اولاد ویرا محمد زئی میگویند۔ و محمد زئی درمیان خود سه گروه شدند ۔ یکی الیاس زئی و ہڑانک و چهار صده اند ، دوم بارک زئی که اتمان و رجڑ اند ، سیوم بنوزئی و ترنگ زئی و عمر زئی و شیرپاوی و بارک شازی اند و ایشان هر خیل درمیان خود نیز خیلها دارند اما بسبب طوالت مرقوم نشدند و ایشان در اشنغر کناره دریای جندی مابین دوآبه و لنگر کوٹ سکونت میدارند۔ دویم خیشگی که اولاد ویرا خیشگی میگویند و از خیشگی ابن زمند شش فرزند بوجود آمدند۔ یکی شوریانی که اولاد ویرا شوریانی میگویند، دوم غزلان که اولاد ویرا غزلانی میگویند ، سیوم عزیز که اولاد وی را عزیز زئی میگویند ، چهارم عمر که اولاد ویرا عمر زئی میگویند، پنجم بٹک که اولاد ویرا بٹکزئی میگویند ششم سلمهاک که احوال اولاد وی در تواریخ معلوم نشده است و ایشان اکثر در ملک قلات و ترنک و بعضی در غوربند و بعضی در مواضع متفرقه هندوستان سکونت میدارند۔ سیوم توخی که اولاد ویرا توخی میگویند و ایشان همه مابین ملک کورمه و ملک خوست متصل ملک بنون

او دوئی تبول د باجوړ په لته د قشقار او دوابي تر مينځه پراته دي.
په دے ځائے د خښي ابن کند شجره پوره شوه ـ

**د مند ابن خيرالدين د اولاد بيان :** د خيرالدين ولد سړبن د ځوی مند پنځه ځامن وُو ـ يو محمد ، چه اولاد ته ئے محمدزی ويلے شي. او محمدزی په خپلو کښے درے کوره شوی دي. الياس زی ، پړانګ او چارسده ـ بل بارک وو چه اولاد ته ئے بارک زی ويلے کيږی . چه اتمان او رجړ دوه خپله ئے دي. دريم کور د بنوزو ، ترنګ زو عمرزو ، شيرپاؤيانو او بارک شازو دے. او دا ټول خپلونه په خپلو کښے نور وارۀ وارۀ خپلونه لری چه تفصيل ئے ډير اوږد دے ـ او دوئی ټول په اشنغر مېشته دی، او د جندی سيند د غاړے نه واخله د لنګرکوټ پورے علاقه ئے نيولے ده ـ د مند دويم ځوے خيشګی وو ، د خيشګی شپږ ځامن وُو ـ يو شوريانے چه اولاد ئے هم په شوريانو يادېږی ـ دويم غزلان چه نسب ته ئے غزلانی وائی ـ دريم عزيز چه نسل ته ئے عزيززی ويلے شي. څلورم عمر چه عمرزی ئے اولاد دے. پنځم بټک چه خپلخانے ته ئے بټکزی ويلے کيږی ـ شپږم ملماک چه د هغۀ د اولاد ذکر په تواريخو کښے نۀ دے راغلے او دوئ ټول په قلات ترنک او بعضے په غوربند* او څنے په هندوستان کښے خوارۀ وارۀ اباد شوی دی ـ د مند دريم ځوے توخی دے چه اولاد ته ئے هم توخی وائی ـ او دوئی ټول د کرمے او خوست په مينځ مينځ کښے پراتۀ دی ـ چه دا علاقه د بنو

---

* په افغانستان کښے د يوے علاقے نوم چه غوربند نومے رود پکښے بهېږی

سکونت میدارند اما خیلهای وی باینجانب معلوم نشده است۔ چهارم نیکو که اولاد ویرا نیکوزئی میگویند و ایشان همه متصل بالا بنگش سکونت میدارند، اما خیلهای ایشان نیز به اینجانب معلوم نشده است۔ پنجم کتانی که اولاد ویرا کتانی میگویند و ایشان قوم اندک اند مکان سکونت مستقل علیحده ندارند چند چند خانه جا بجا متفرق اند و درمیان اولاد فرزندان زمند نیز خیلها بسیار اند چنانچه هر یک خیل مذکور درمیان خود خیلها دارد اما چون که احوال ایشان باینجانب معلوم نشده بتفصیل مرقوم نشد۔

**بیان اولاد کاسی ابن خیرالدین ولد سڑہ بن :** گویند که شنواری و ژیڑیانی و الوزئی و کتوان اولاد وی هستند، چنانچه قوم شنواری مابین جلال آباد و پشاور متصل خیبر سکونت میدارند و ما بقیه اقوام ثلث متصل بلوچستان بروهی سکونت میدارند و نیز میگویند که کاسی را هرگز فرزند بوجود نیامده بود اما یک فرزند از زمند برادر خود خواسته بفرزندی خود کلان نمود۔ چنانچه این اقوام مذکور از اولاد آن برادرزاده وی اند والله اعلم بحقیقةالحال تا اینجا بود سلسله اولاد سڑہ بن ولد قیس عبدالرشید که مرتبه بمرتبه مسطور شد۔

د ملک سره متصله ده ـ خو ما ته د توخیانو د خېلو تفصیل په لاس رانغے۔ د مند څلورم ځوے نېکو بادېږی۔ چه اولاد ئے په نېکوزی مشهور دے۔ او دوئی ټول د برو بنګشو سره نزدے اوسی۔ خو د دوئی د خېلونو تفصیل هم په لاس رانغے۔ د مند پنځم ځوے کټانے یادېږی ـ د دهٔ اولاد ته کټانیان وائی دا ډېر لږ اولس دے او ځان له جدا وطن نهٔ لری۔ څو څو کورونه ځائے په ځائے خوارهٔ وارهٔ اوسی۔ او د زمند اولاد په خپلو کښې ډېر خېلونه لری ـ خو هرکله چه د دوئی احوال پوره معلوم نهٔ دے نو تفصیل ئے هم رانډورے شو۔

**د کاسی ابن خیرالدین ولد سړبن د اولاد بیان :** وائی چه شنواری* زېران الوزی او کتران د کاسی اولاد دے۔ چنانچه شنواری د جلال اباد او پېښور تر مینځه په خیبر کښې اوسی۔ هاتے درے قومونه د بلوچستان بروهی په خواوشا کښې اباد دی ـ لا دا هم ویلے کېږی چه د کاسی خپل ځوے نهٔ وو خو د خپل ورور زمند یو ځوے ئے په ځوی‌ولئی نیولے وو او لوئے کړے ئے وو ، چنانچه دا ټولے قبیلے د هغهٔ د نسل نه دی۔ والله اعلم بحقیقت‌الحال۔ د قېس عبدالرشید د ځوی سړبن نسب‌نامه پوره په پوره تر سره شوه۔

---

* په اصل نسخه کښې شنوازی لیک دے۔

## فصل دوم

**در بیان فرزندان بیٹن ولد قیس عبدالرشید :** از بیٹن ولد قیس عبدالرشید سه فرزند و یک دختر بوجود آمد ، یکی اسمعیل، دوم اشبون، سیوم گنچین، چهارم دختری بی بی متو - اما خیلهای فرزندان بیٹن چندان مشهور نیستند هر قدر خلق که هستند بنام پدر مشهور اند و علی‌العموم ایشان را بیٹنی میگویند و ایشان همه درمیان کوه مابین لوحانی و قوم وزیر سکونت میدارند و اولاد بی‌بی متو را نیز بیٹنی میگویند -

**بیان فرزندان بی بی متو دختر شیخ بیٹن :** از بی بی متو دختر شیخ بیٹن سه فرزند بوجود آمدند، یکی خلجی بالفعل به غلجی مشهور است که اولاد وی مابین کابل و قندهار سکونت میدارند- دوم لودی که اسم محضه وی ابراهیم بود، سیوم سروانی و از غلزی پسر بی بی متو سه فرزند بوجود آمدند - یکی ابراهیم، دوم تورانی، سیوم بابو و از ابراهیم پسر غلزی دو فرزند بوجود آمدند یکی حجب، دوم سهاک، چنانچه سلیمان خیل و علی خیل و هارو وغیره که مجموعه سیزده خیل اولاد حجب هستند که بیان هر یک ایشان موجب تطویل است و ترک یوسف خیل وغیره مجموعه هفت خیل اولاد سحاک اند اما بسبب

## دویم فصل

د بیټن ولد قیس عبدالرشید نسب‌نامه : د بیټن ولد قیس عبدالرشید درے ځامن او یوه لور وه چه نومونه ئے دا وُو۔ اسمعیل، اشپون، کنچین او د لور نوم ئے بی بی متو وو۔ خو د بیټن د ځامنو خېلونه څه داسے زیات شهرت نهٔ لری، هر څومره خلق چه پکښے دی د خپل پلار په نوم یادیږی او ټولو ته بیټنی ویلے شی۔ او دوئ ټول په غرئیزه سیمه د لوهانړو او وزیرو په مینځ کښے اباد دی۔ د بی بی متو اولاد ته هم بیټنی ویلے شی۔

د شیخ بیټن د لور بی‌بی متو اولاد : د بی بی متو درے ځامن وُو، یو غلجے، چه اولاد ته ئے هم غلجی ویلے کیږی۔ او د کابل او قندهار تر مینځه پراته دی، دویم لودی چه اصل نوم ئے ابراهیم وو، دریم سروانړے۔ د بی بی متو د ځوی غلځی درے ځامن وُو، یو ابراهیم، دویم تورانے، دریم بابو او د غلځی د ځوی ابراهیم دوه ځامن وُو۔ یو حجب او دویم سهاک چنانچه سلیمان خېل، علی خېل او هاروکی وغیره چه د دیارلسو خېلونو مجموعه دی دا ټول د حجب اولاد دے۔ خو که بیل بیل ذکر ئے کیږی نو خبره به اوږده شی ۔ او ترک، یوسف خېل او څنے نور خېلونه چه ټول اووهٔ کوره دی دا د سحاک په اولاد کښے دی ۔

تطویل بیان ایشان نشده۔ و از تورانی پسر غلزی دو فرزند بوجود
آمدند۔ یکی بارو، دوم بابو و از بارو ابن تورانی دو فرزند بوجود آمدند۔
یکی توخی، دوم هوتک و از توخی بن بارو چهار فرزند بوجود آمدند۔
یکی نهمند، دوم نور، سیوم ایوب، چهارم حسن و ایشان نیز هر چهار
برادر چهار خیل شده اند و درمیان خود خیلها دارند اما بسبب طوالت
در تحریر نیامدند و از هوتک ابن بارو چهار فرزند بوجود آمدند یکی
یوسف، دوم عرب، سیوم دولت، چهارم ملک یار، و ملک یار را
سه پسر بوجود آمدند۔ یکی پای، دوم رمی، سیوم حسین و در اولاد
حسین حاجی میرویس نامی بوده که در سنه ۱۱۲۰ الف و مایه و
عشرون بسبب بغض و عداوت روافض ناظم قندهار را که رافضی بود
کشته ملک ایران را تا سیستان و فراه در تصرف خود آورده بعد
ازان داور ممالک آرای عد و بند قلعه کشای محمود شاه پسر حاجی
میر ویس متوجهه ایران شده با پادشاه ایران جنگهای بسیار کرده
آخرالامر اورا در شهر اصفهان محاصره کرده فتح نمود پادشاه مستقل
آن ولایت گردید تا وقتیکه از دار فانی بدار بقا فرامید۔ سلطنت پناه
اشرف شاه ابن العم وی قایم مقام وی شده والی آنجا گردید چند سال
پادشاهی نمود، وقتیکه خواهش الهی و بمقتضای تنزع الملک من تشاء
نوع دیگر شده اعظم السلاطین اکرم الخوانین نادرشاه پادشاه خروج

د غلزی د ځوی تورانی دوه ځامن وُو، یو بارو، دویم بابو او د تورانی د ځوی بارو هم دوه ځامن وُو، یو توخی، دویم هوتک، د توخی ابن بارو څلور ځامن وُو یو نهمند، دویم نور، دریم ایوب، څلورم حسن او دوئی هم څلور خپله شوی دی۔ او په خپلو کښې ئے هم کنړ خپلونه دی۔ خو تفصیل ئے رانۀوړے شو۔ د هوتک ابن بارو څلور ځامن وُو، یو یوسف، دویم عرب، دریم دولت، او څلورم ملک یار۔ د ملک یار ځان له څلور ځامن وُو، د یو نوم پائی وو، بل رومی، دریم حسین او حاجی میرویس خان غلجے چه د نوم ناموس خاوند او لوئے ننګیالے پښتون مشر تېر شوے دے۔ د حسین په اولاد کښې وو۔ چه ۱۱۲۰ هجری کښې ئے د قندهار حاکم قتل کړو او په ایران، سیستان او فراه قابض شو۔ د هغۀ نه پس د هغۀ د ننګیالی او توریالی ځوی محمود شاه ایران ته مخه شوه او د ایران د بادشاه سره ئے ډېر جنګونه او معرکے اوکړے او اخر ئے هغه د اصفهان په ښار کښې محصور کړو او فتح ئے پرے اوموندله او د ایران د ټول ملک مستقل بادشاه شو۔ هرکله چه محمود شاه وفات شو نو د هغۀ د ترۀ ځوے اشرف شاه د هغۀ قایم مقام شو او د ایران تخت ئے اونیوو او څو کاله بادشاهی ئے اوکړه۔ خو لکه چه د تنزع الملک ممن تشاء تقاضا انقلابونه واقع کېږی په دغه سېمه د نادرشاه افشار خروج

نموده پادشاهی را از ایشان در گرفته مدت بسیار سال پادشاهی و سلطنت نمود و از بابو ابن تورانی دو فرزند بوجود آمدند یکی لاغری دوم طاهری و ایشان نیز اینچنین درمیان خود خیلها دارند اما بسبب طوالت و اختصار رساله بیان آنها نشده -

**بیان فرزندان لودی ابن بی‌بی متو :** از لودی ابن بی‌بی متو سه فرزند بوجود آمدند یکی انیازی که موسٰی خیل و عیسٰی خیل و سنبل و سهارنگ اولاد وی هستند و من حیث‌المجموع ایشانرا انیازی میگویند و ایشان جمیع فرق مذکوره در ضلع شهر مکهڈ کناره آب سند تا ڈیره اسمعیل خان سکونت میدارند- دوم سیانی که سرک و لوحانی و سُور و سهبال اولاد وی اند و قوم مروت نیز اولاد لهانی بن سیانی است و اعظم‌السلاطین مستهزم‌الخوانین سلطان بهلول که از جمله سلاطین هند است از اولاد سرک است و وی بادشاهی از سلطان اعظم‌الملک اکرم سلطان علاؤالدین گرفته و سلطان علاؤالدین از اولاد خضر خان بود و خضر خان نایب صاحب قران ممالک ستان امیر تیمور بود که او بعد از وفات امیر تیمور پادشاهی مستقل شده تا سه چهار پشت اولاد وی پادشاهی هند کرده بود و آخر ایشان سلطان علاؤالدین بود که سلطان بهلول پادشاهی از وی گرفته سی و نهه

واقع شو او دوئی نه ئے بادشاهی واغیسته او ډیره موده ئے حکومت اوکړو۔ د بابو ابن تورانی دوه ځامن وو، یو لاغرے دویم طاهرے او د دوئی هم په خپلو کښې ګنړ خپلونه زیږیدلی خو د طوالت له کبله ئے ذکر پاتے کړے شو۔

**د لودی ابن بی بی متو د اولاد بیان :** د لودی ابن بی بی متو درے ځامن وو۔ یو انیازے چه موسیٰ خیل، عیسیٰ خیل سنبل او سهارنګ ئے اولاد دے۔ دے ټولو ته په ګډه نیازی ویلے کیږی۔ او دوئی ټول د مکهډ ښار په ضلع کښې د اباسین په غاړه تر ډیره اسماعیل خان پورے سکونت لری۔ دویم سیانی وو چه سرک، لوهانړی، سور* او مهیال د هغهٔ اولاد دے او سروت هم د لهانی بن سیانی اولاد دے۔ او اعظم السلاطین مستوزم الخوانین سلطان بهلول لودی چه د هند تاجدار وو د سرک د اولاد نه دے۔ او هغه د سلطان علاؤالدین نه بادشاهی اغیستے وه۔ او سلطان علاؤالدین د خضر خان په اولاد کښې وو او خضر خان د امیر تیمور صاحبقران نایب وو۔ دے د امیر تیمور د وفات نه پس مستقل بادشاه شو او درے خلور پیړئ ئے د اولاد بادشاهی وه۔ او په دوئ کښې د ټولو نه ورستے سلطان علاؤالدین وو چه سلطان بهلول لودی ترے بادشاهی تر لاسه کړے وه۔ د سلطان بهلول حکومت یو کم خلویښت

---

* په اصل کښې سوز و چه پے لیک دی خو دا صحیح نهٔ ښکاری۔

سال پادشاهی نمود وقتیکه سلطان بهلول از دار فنا بدار بقا رحلت
کرده و الی ولایت وارث سلطنت سکندر شاه پسر سلطان بهلول قایم
مقام وی شده سی سال پادشاهی نمود وقتیکه او نیز ودیعت حیات
خود را بمالک حقیقی سپرده جهاندار سپهر اقتدار ابراهیم شاه پسر
سکندر شاه قایم مقام وی شده هشت سال پادشاهی نمود بعد ازان مزین
سریر سلطنت عهد میانی خلافت ظهیرالدین محمد بابر پادشاه بقصد
تسخیر ممالک هندوستان از کابل روانه شده آمده در گرد نواح شهر
پانی پت با ابراهیم شاه مقاتله و محاربه نموده ابراهیم شاه را مقتول
ساخت و پادشاهی بدو قرار گرفت ـ چنانچه تمامی مدت پادشاهی سلطان
بهلول معه فرزندان و نبیره هفتاد و هفت سال بود و دیگر سریر آرای
ملک شهریاری طراوت بخش در تاجداری شیرشاه که وی نیز از جمله
سلاطین هند بود از اولاد سور بن سیانی است و وی بادشاهی از
ملک‌السلاطین ضابط امورالملک والدین نصیرالدین محمد همایون پادشاه
گرفته چند سال پادشاهی نمود وقتی که شیر شاه منازل خود را بکلی
طے کرده و رای زمان داور دوران سلیم شاه پسر وی بجای او
برسریر خلافت نشسته چند سال پادشاهی نمود وقتیکه وی نیز از دار
فانی بدار باقی نقل نموده نصیرالدین محمد همایون بادشاه دفع دیگر
از ایران آمده تخت نشین گردید ـ باید دانست که انچه درین مقام

کاله وو په دۀ پسے د دۀ ځوے سکندر شاه بادشاه شو۔ هغۀ هم
دیرش کاله بادشاهي اوکړه درکله چه دے هم وفات شو نو حکومت
د دۀ د ځوی ابراهیم شاه په لاس ورغے۔ ابراهیم شاه اتۀ کاله بادشاهي
اوکړه۔ د دۀ نه پس ظهیرالدین بابر بادشاه د کابل نه هندوستان ته
راغے او د پانی پت د ښار په خوا کښے ئے د ابراهیم شاه سره مقابله
اوشوه۔ ابراهیم شاه په دے جنګ کښے قتل کړے شو او بادشاهي
د بابر بادشاه په لاس ورغله۔ چنانچه د سلطان بهلول لودی او د
هغۀ د ځامنو ټول دور حکومت درے کم اتیا کاله وو۔ او د هند
بل پښتون بادشاه شیر شاه د سور ابن سیانی د نسل نه دے۔ او هغۀ
د نصیرالدین همایون بادشاه نه بادشاهي اخیستے وه۔ او د یو ځو
کاله حکومت کولو نه پس د هغۀ ځوے سلیم شاه بادشاه شو
خو ځو کاله پس چه د هغۀ د ژوند وربشه هم
تمامه شوه نو همایون بادشاه دوباره د ایران نه هند
ته راغے او د دهلی تخت ئے اونیو۔ په دے ضمن کښے

ذکر پادشاهان افغانان شده حصری ندارد که غیر از ایشان پادشاهان افغانان دگر نگذشته اند بلکه وجه تخصیص ایشان ازان شده که ایشان تخت نشین دارالخلافت دهلی بودند والّا وقتی که هندوستان طوایف الملوک بود پادشاهان دران وقت در یک عصر متعدد بودند پادشاهان افغانان دیگر نیز گذشته اند چنانچه در بنگاله و دکن وغیره که بر اصحابه تواریخ و اهل خبر پوشیده نیست۔ سیوم ڈوٹانی پسر لودی که اولاد وی را نیز ڈوٹانی میگویند و ایشان همه در قلعه وانڑه متصل کانی گڑم و ملک قوم وزیر سکونت میدارند و گویند که قوم متنسیه نیز در اصل از قوم متی هستند خصوصاً از اولاد لودی و یا از اولاد سروانی هستند والله اعلم۔

**بیان احوال سروانی ابن بی بی متو:** از سروانی ابن بی بی متو خیلهای مشهور نشده اند هر قدر خلقی که هستند همه را سروانی میگویند و ایشان همه در ملک دهرابن متصل قوم لوهانی سکونت میدارند اما بالفعل مردم قلیل درانجا هستند و اکثر در هندوستان متفرق شده اند سروانی ابن شاه حسین اگر چه از بطن بی بی متو نیست اما اولاد سروانی نیز داخل اولاد بی بی متو است۔ چنانچه اولاد غلزی و اولاد لودی و اولاد سروانی را من حیث المجموع متی میگویند و متی از اولاد بیٹن است که جمیع اقوام ایشانرا بیٹن میگویند ۔ گویند که والده حقیقی

چه د پښتنو بادشاهانو څه ذکر اوکړے شو ګنی دا قدرے وو بلکه د دوئی د تخصیص سبب دا وو چه دوئی په دهلی حکومت کړے دے۔ او څه وخت چه په هند کښے طوائف الملوکی وه او په یو وخت به ډیر بادشاهان وو نو ډیر پښتانه سلاطین هم په دوئی کښے د بنګال او دکن په سیمه تیر شوی دی۔ چه د تواریخو عالمانو ته ښهٔ معلوم دی۔ دریم دوتانی د لودی څوے چه د هغهٔ اولاد ته دوتانی ویلے شی او دوئی ټول په وانړه کښے د کانړی ګرم او وزیرستان په سیمه اباد دی۔ او وائی چه متنی هم په اصل کښے د متی د قوم نه دی او د لودی یا سروانی په اولاد کښے یادیږی۔ والله اعلم۔

**د سروانړی ابن بی بی متو اولاد:** د سروانړی ابن بی بی متو په اولاد کښے مشهور خېلونه نهٔ دی راغلی۔ او هر څومره خلق چه دی سروانړی ورته وائی۔ او دوئی ټول په ډیره پراتهٔ دی۔ او د لوهانړو ګاونډیان دی۔ خو بالفعل په هغه سیمه د دوئی ابادی ډیره لیږه ده او اکثر په هندوستان کښے خوارهٔ شوی دی۔ د شاه حسین څوے سروانړے اګر چه د بی بی متو نه نهٔ وو پیدا، خو بیا هم د دهٔ اولاد د بی بی متو په نسب کښے شماریږی۔ چنانچه د غلزی، لودی او سروانړی دریو وارو اولاد ته په ګډه متی ویلے شی او متی د بیټن په نسل کښے دے او دے ټولو قبیلو ته په جمع بیټنی وائی۔ وائی چه د

سروانی ممی نام داشت که زوجه شاه حسین، دختر کاغ نام مطربی بوده
اما چونکه اولاد بی بی متو بسیار شده تغلیباً اولاد سروانی را نیز متی
میگویند و مخفی نماند که غلزی را ازان سبب غلزی میگویند که
شاه حسین نام شاهزادهٔ خراسانی است که سلسلهٔ نسب وی بروایتی به
ضحاک میرسد و بقول دیگر سلسله نسب وی بحضرت امام حسین
رضی‌الله عنه میرسد والله اعلم بالصواب۔ بحسب قسمت آبخور از ملک
خود بیجا شده آمده نزد شیخ بیٹن استقامت گرفت و شیخ بیٹن تربیت
وی کما حقه کرده کلان نمود، وقتیکه آثار رشد و قابلیت در وی
مشاهده کرده دختر مذکور خود بی بی متو نام را در عقد نکاح وی
در آورد۔ چنانچه قبل ازین زفاف و رسم عروسی و اعلان که مابین‌الناس
متعارف است در خانه پدر از شهزاده مذکور حامله گشت* بعد از رسم
عروسی و زفاف در مدت اندک متولد شده ازان سبب ولد وی را به
غلزی مسمّٰی گردانید زیرا که بزبان افغانی دزد را غل میگویند و زئی
بمعنی زائیده شده پس مراد ازین آنکه بدزدی متولد شده است تا اینجا
بود سلسله اولاد بیٹن ولد قیس که مرقوم گردید۔

*دا یو رسم وو چه چنغلبازی به ئے ورته وے۔ د کوژدن او نکاح
نه پس به د جینئ د پلار په کور د هلک پښه ازاده شوه او د خوابیے
په صلاح به ئے د خپلے چنغلے سره خبرے اترے ازادے شوے۔ په دے
کښے به کله کله د رسمی وادهٔ نه اګاهو د چنغلے حمل اوشو دے
رسم ته به ئے پښه ارتی هم وے۔

سروانړی د خپلے مور سمئ نوم وو دا د شاه حسین ښځه او د کاغ مطرب لور وه ـ خو هرکله چه د بی بی متو اولاد ډیر ګنړ وو هم د دغے غلجے د کباله سروانړی هم په متی ورګډه دی. او وائی چه غلزی ته په دے سبب غلزے ویلے شی چه د خراسان یو شهزاده چه شاه حسین ئے نوم وو او د یو روایت مطابق ئے سلسله د ضحاک سره لګی او د یو بل قول مطابق دے د حضرت امام حسین رضی‌الله عنه د نسب نه وو ـ والله اعلم بالصواب ـ وائی چه دے لا هلک وو چه د خپل وطن نه راپاڅیدو او د شیخ بیټن سره مپشته شو ـ او شیخ بیټن د هغهٔ مناسب تربیت وکړو او لوئے ئے کړو او هرکله چه هغه زلمے شو او د فکر او پوهے خاوند شو او د اهلیت او قابلیت آثار پکښے څرګند شول نو شیخ بیټن ورته خپله لور بی بی متو کوژدن کړه او نکاح ئے ورسره اوکړو ـ خو د رسمی وادهٔ د اعلان نه مخکښے د پلار په کور د بی بی متو د شهزاده نه حمل شو او د وادهٔ نه لیرے ورځے پس ئے یو ماشوم پیدا شو ـ او په دغه سبب ئے د دے ځوی نوم غلزے شو ـ ځکه چه په پښتو کښے په پټه راغلی ته غل وائی- پس د غلزی نه مراد هغه ځوے دے چه په غلا راغلے دے- په دے ځائے د بیټن ولد قیس شجره ختمه شوه ـ

---

## فصل سیوم

**در بیان فرزندان غورغشت** از غورغشت ابن قیس عبدالرشید سه فرزند ابن قیس عبدالرشید : بوجود آمدند یکی دانی، دوم بانی، سیوم مندو - و از دانی ابن غورغشت چهار فرزند بوجود آمدند، یکی کاکړ که اولاد وی در ملک زیوب و بوژی در ضلع قندهار سکونت میدارند - دوم ناغر که اولاد وی مابین قوم کاکړ و سند بلوچ در نواحی ډیره غازی خان سکونت میدارند - سیوم داوی، چهارم بنی که اولاد فرزندان وی در ملک سانک منداهی متصل شکار پور سکونت میدارند ، صافی و کندون اولاد پنی هستند - و از بانی ابن غورغشت چهار فرزند بوجود آمدند ، یکی میر که اولاد ویرا میرزی میگویند ، دوم کتو که اولاد ویرا کتوزئی میگویند - سیوم پیر که اولاد ویرا پیرزئی میگویند - چهارم عزرائیل که احوال اولاد وی هیچ باینجانب معلوم نشده و ایشان همه در نواحی قندهار سکونت میدارند و از مندو ابن غورغشت هر قدر اولاد وی که بوجود آمده مندوخیل میگویند و ایشان همه بر کناره دریای زیوب که از کوه کسی به ډیره اسمعیل خان می آید سکونت میدارند تا اینجا بود سلسلهٔ اولاد غورغشت ابن قیس که نوشته شد -

تا این جا بود هر سه سلسله های اولاد هر سه برادران از سړه بن و بیټن و غورغشت فرزندان قیس عبدالرشید که مسطور گشت -

---

## دریم فصل

**د غورغشت ابن قیس عبدالرشید اولاد:** د قیس عبدالرشید د ځوی غورغشت درے ځامن وو، یو دانی، دویم بانی، دریم مندو۔ او د دانی ابن غورغشت څلور ځامن وُو۔ یو کاکړ چه اولاد ئے د ژوب او بوړی په زمکه په قندهار کښے اوسی۔ بل ناغر وو چه اولاد ئے د کاکړو او د سند د بلوچو په خوا کښے د ډیره غازی خان په سیمه میشته دی، دریم دادی، څلورم پنی چه د هغهٔ اولاد د سانگ منداہی په سیمه د شکارپور سره نزدے اباد دی۔ او صافی او کندون د پنی اولاد دے۔ او د بانی ابن غورغشت څلور ځامن وُو یو میر، چه اولاد ته ئے میرزی ویلے شی۔ بل کتو چه نسب ته ئے کتوزی وائی۔ دریم پیر چه اولاد ئے په پیرزی مشهور دی۔ څلورم عزرائیل چه د هغهٔ د اولاد په حقله هیڅ معلومات نیشته۔ او دوئ ټول د قندهار په خواوشا کښے اباد دی۔ او د مندو ابن غورغشت چه هر څومره اولاد پیدا شوے دے په مندو خېلو یادیږی۔ او دوئ ټول د ژوب رود په غاړه چه د کسی غرهٔ نه ډیره اسمعیل خان پلو رابهیری اباد دی۔ تر دے د غورغشت د اولاد شجره وه۔

دا د قیس عبدالرشید د ځامنو سړبن، بیټن او غورغشت نسب نامه وه۔

---

## فصل چهارم

**در بیان احوال کڑلانی و بیان فرزندان کڑلانی :** گویند که امرالدین که پدر اورمڑ است معه برادر خود که میانی بود و با ترین بشکاری برفت ـ بعضی گویند که نبیرهائے امرالدین بودند که عبدالله و زکریا نام داشتند ـ پس علی تقدیر الاختلاف بجای رسیدند که لشکر در انجا بشب فرود آمده و علی الصباح آن کوچیده رفته بود ایشان هر دو بجای آن اشکر آمده میگردیدند تا ناگاهی یکی از ایشان سطل آهنی در انجا افتاده یافت و دیگر یک پسر شیر خوره در آنجا یافت و آن کسی که سطل آهنی یافته بود فرزندی نداشت و آن کسی که پسر یافته بود فرزندان بسیار داشت ـ پس چونکه ایشان هر دو از یکدیگر خویش و قریب بودند سطل مر صاحب پسر را گفت که مرا فرزندی نیست و ازین دولت بی نصیب اگر این پسر را بمن مرحمت فرمای که من او را بفرزندی پرورش نمایم تا نام من ازین پسر در عالم بماند نهایت مهربانی تو باشد تا زنده باشم ممنون احسان تو خواهم بود و این سطل آهنی بعوض وی از من بگیر آخر الامر صاحب پسر مرآن پسر را بصاحب سطل داد و آن سطل

## شلورم فصل

**د کرلاڼي د اولاد بيان:** وائي چه امرالدين چه د ارمړ څوے دے
د خپل ورور سره چه يا مياني وو يا ترين، په ښکار لاړ شو. د بعضو
دا خيال دے چه د امرالدين ځامن ُوو يو عبدالله نومېدو او بل
زکريا. د نصيب کارونه ُوو دوئ په يو داسے ځائے ورغلل چه د
شپے د پړاؤ نه پس ترے سحر لښکر کوچ کړے وو. دوئ دواړ
چه هغه ځائے ته راغلل او اخوا دېخوا پکښے کرځېدل نو نيومه
يو ورور د اوسپنے يو کړېے اوسوند او بل ورور ئے يو ماشو
بيامونډو. کوم ورور چه کړېے موندے وو د هغهٔ اولاد نهٔ وو او
ماشوم چه ئے موندے وو هغه صاحب اولاد وو. او هرکله چه دوئ
دواړه يو تر بله ډېر نزدے وو. د کړهي خاوند هغے صاحب اولا
ورور ته اووے چه وروره زما اولاد نېشته او په دے حقله بے برخے
يم که دا ماشوم ما له راکړے چه زهٔ ئے په څوي ولئي اونيسم ا
د دهٔ له کبله که زما نوم په دنيا پاتے شي نو دا به ستا لوئے
احسان وي او دا د اوسپنے کړېے تهٔ واخله ستا به پکار شي. اخر چا چ
ماشوم موندے وو هغه په دے رضا شو ماشوم ئے هغهٔ له ورکړو او کړ

آهنی از وی خود گرفت و نام آن پسر بمناسب عوض سطل آهنی کراهی نهاد ـ زیرا که سطل آهنی را بزبان افغانی کراهی* میگویند اما بمرور سالها و تغیر زبانها بکرلانی مشهور شد الحاصل آن طفل را بخانهٔ خود آورده بفرزندئی خود کلان نمود پس چونکه بسن رشد و تمیز رسیده صبیه از قبایل خود در عقد نکاح وی درآورد تا اولاد بسیار از وی بوجود آمده که اکنون مرقوم میگردد و کرلانی در اصل سڑه‌بن است ازین موجب که پسر خوانده امرالدین است و شرف‌الدین بن سڑه‌بن است و دیگر که اورمڑ را ازان سبب اورمڑ میگویند که والده وی دختر آهنگر بود چون اورمڑ را مادر دیگر هم بود گه گاهی آن مادر دیگر ویرا از روی قهر طعنه زدی و گفتی درانوقت که کار از وی درست نیامدی چه ”د آهنگر اور مڑ شه،، یعنی آتش آهنگر بمرد بنابرآن با سم اورمڑ مشهور شد ـ

**بیان فرزندان کرلانی :** از کرلانی پسر خوانده امرالدین دو فرزند بوجود آمدند یکی کودی ، دوم ککے، و از کودی پسر کرلانی هفت فرزند بوجود آمدند از زوجه یکی اتمان که اولاد ویرا اتمان خیل میگویند و ایشان همه در ملک ٹوٹئی مابین ملک باجوڑ و سوات سکونت

---

*د ارسړو خپله ژبه ارمړی ده او اس ئے هم د کانړی کرم ځائی ارمړ وائی۔ نو دا څنګه کېدے شوه چه دوئی یو تر بله په دغه سوقع پښتو ویله ؟ ـ

ئےواغیست او د هغے کړهی په مناسبت د هغےماشوم نوم ''کړائے،، شو ۔ خو د وخت په تېرېدو او د ژبو په بدلېدو دغه نوم رو رو کرلاڼړے شو ۔ لنډه دا چه هغه ماشوم ئے کورته راوړو ۔ لکه دا ځوی ئے لوئے کړو چه زلمے شو نو په خپله قبیله کښې ئے ورله وادهٔ اوکړو او ډېر اولاد ئے اوزېږېدو ۔ چه تفصیل ئے دا دے۔ کرلاڼړ په اصل مړېنے دے ځکه چه امرالدین په ځوی ولئی نیولے وو ۔ او امرالدین د ارمړ پلار او د شرف‌الدین ځوے دے او شرف‌الدین د سړبن ځوے دے ۔ بله دا چه ارمړ ته له دے کبله ارمړ وائی چه د دهٔ مور د آهنګر لور وه او هرکله چه د ارمړ بله مور هم وه او کله کله به دغے مېرے مور ورته پېغور ورکوؤ ۔ او کله چه به ئے څه وران کار اوکړو نو ورته به ئے وے چه '' د آهنګر اور مړ شه ،،۔

**د کرلاڼړی اولاد:** امرالدین کرلاڼړ په ځوی والئ نیولے وو ۔ د کرلاڼړ دوه ځامن اوشول یو کودے بل ککے۔ د کرلاڼړی د ځوی کودی اووه ځامن وُو ۔ په دوئی کښې یو اتمان چه اولاد ته ئے اتمان خېل وائی ۔ او دوئی ټول د ټوټئی په سیمه د باجوړ او سوات تر مینځه

میدارند دوم دلازاک که اولاد ویرا دلازاک میگویند و ایشان همه در ملک دوآبه و باجوڑ و سمه که عبارت از تحت الجبل ملک یوسف زئی است سکونت میداشتند۔ وقتی که غلبه مردم یوسف زئی شده ایشانرا از انجا مستاصل ساخته ایشان بملک هندوستان آمده متفرق گشتند و قدری قلیل از ایشان هنوز در هزارهٔ کورلغ تعلقهٔ اٹک سکونت میدارند، سیوم ورک زئی که اولاد ویرا ورک زئی میگویند این هر سه برادر از یک مادر متولد شده بودند۔ چهارم مانی و از مانی یک فرزند بوجود آمد آفرید نام که اولاد ویرا آفریدی میگویند و ایشان هر دو قوم یعنی ورک زئی و آفریدی در ملک تیراه تعلقه شهر پشاور سکونت میدارند، پنجم خٹک که اولاد ویرا خٹک میگویند و ایشان همه از ملک سرای اکوڑا و خیرآباد گرد نواح کوه نیلاب و از لاچی تا حد قوم بنوخی سکونت میدارند۔ ششم منگل که قوم مقبل و زدران بهادر زئی اولاد وی هستند و ایشان همه متصل ملک خوست سکونت میدارند۔ هفتم خوگی که اولاد ویرا خوگیانی میگویند و این هر چهار از مادر دیگر متولد شده بودند۔ و عبدالرحمن و شیرزاد و مندوزئی و خوباڑی و توری و زازی همه اولاد خوگی اند و این شش خیلها همه در گرداگرد سفید کوه متصل بالا بنگش سکونت میدارند و مابقیه ازین خیلهای مذکوره اولاد خوگیانی که به خوگیانی شهرت

پراتهٔ دی۔ بل دلهزاک چه اولاد ته ئے هم دلهزاک ویلے شی ا
دوئی تپول په دوابه، باجوړ او سمه چه د یوسفزو د غریزے سیم
کوزنئ میدانی علاقے ته ویلے کیږی پراته وُو ، خو هر کله چه
یوسفزو غلبه شوه نو دوئی ئے د دغه سیمے نه راپاسول او پ
هندوستان راخوارهٔ شول۔ او څه لږ شان په کرلغ هزاره چه د اټک
په تعلقه کښے شامله ده میشته دی۔ د کرلاڼړ د څوی کودی دری
څوے ورک وو د دهٔ اولاد ته ورکزی ویلے شی۔ دا درے وار
ورونړه د یوے موره وُو۔ د کودی څلورم څوے مانی وو۔ د ماز
یو څوے وو آفرید نوم ئے وو د دغهٔ اولاد ته افریدی وائی ۔ د
دواړه قومونه یعنی ورکزی او افریدی د تیراه په ملک کښے چه
پیښور په تعلقه کښے دے استوږنه کوی۔ د دوئی پنځم وروو خټک
وو چه اولاد ته ئے هم خټک وائی او دوئی تپول د سرائے اکوړ
او خیرآباد د سیمے نه د نیلاب د غر خواوشا او د لاچئ نه
بنوڅو تر حده په تپوله رقبه اوسیږی۔ شیږم منګل چه متبل ، ژدران
او بهادرزی ئے اولاد دے۔ او دوئی تپول د خوست په سیمه پراتہ
دی۔ د کودی اووم څوے خوګے وو چه اولاد ئے په خوګیانړ
نوم مشهور دے ۔ دا شپږ واړه خیلونه تپول د سپین غ
چار چاپیره د برو بنګشو سره نزدے اوسی ۔ او د دے
مذکوره خیلونو نه علاوه د خوګیانی اولاد چه شهرت

ارند مابین جلال آباد و پشاور سکونت میدارند و بعضی میگویند
که خوگی فرزند کودی نیست بلکه از اولاد ککی است والله اعلم
لصواب۔ و از ککی پسر کرلانی دو فرزند بوجود آمدند۔ یکی سلیمان
که قوم وزیر و بای زئی و ملک میری اولاد وی اند چنانچه اولاد ملک
یری معه خیلهای قوم بنگش در ملک کوهاٹ و بالا بنگش سکونت
یدارند۔ گویند که سوای از اولاد ملک میری خیلها که در قوم
نگش هستند۔ چنانچه کاغزئی وغیره آنها جمیع اولاد دختر ملک میر
ند و ایشان همه را چنانچه ملک میر و کاغزئی وغیره را بسبب
سکونت ملک بنگش، بنگش میگویند۔ دوم شیتک که دوڑ و سورانی
۔ بلخی و کیوی داود خیل اولاد وی‌اند و اینهمه را بسبب ملک بنو
نوخی میگویند و همچنین جمیع اقوام اولاد کرلانی درمیان خود
خیلهای بسیار دارند اما بسبب اختصار رساله براینقدر اکتفا گردید تا
ینجا بود سلسلهٔ اولاد کرلانی که مسطور شد۔

یان احوال قوم صواتی : قوم صواتی اگر چه در اصل از قوم افغان
یستند اما چونکه زبان افغانان و روش افغانان دارند نهایت مخالفت
فغانان بافغانان مشهور اند و در ذیل افغانان در آورده شده مرقوم
یگردد که قوم صواتی از اول و ابتدا در ملک صوات و باجوڑ
سکونت میداشتند اما وقتی که غلبه مردم یوسف‌زئی بحد کمال رسیده

ئے هم په دغه نوم دے د جلال آباد او پېښور تر مینځه اباد دے
د ځینو دا خیال دے چه خوګی د کودی ځوے نهٔ دے بلکه
ککی ځوے دے۔ والله اعلم بالصواب ۔ د کرلانړ د ځوی ککی دو
ځامن وو یو سلیمان چه وزیر، بائیزی او ملک میری ئے اولاد دے
چنانچه ملک میری د بنګشو د خېلونو سره د کوهاټ په سیمه پراتا
دی او څه په برنو بنګشو کښے اوسی۔ وائی چه د ملک میری د
اولاد نه بغېر هغه خېلونه چه په بنګشو کښے ګډ دی چنانچه کاغذی
وغېره دا ټول د ملک میر د لور اولاد دے او دوئی ټول چنانچ
ملک میری او کاغذی وغېره په دغه سیمه د اوسېدو له کبله پ
بنګشو یادیږی ۔ د ککی دویم ځوے شیتک وو چه دوړ ، سورانی
خلجی، کیوی او داؤد خېل ئے اولاد دے او دوئی ټول د بنو پ
ملک کښے د اوسېدو له کبله په بنوځی نوم مشهور شوی دی
دغه ټول قومونه او اولسونه د کرلانړی په اولاد کښے دی ۔
دوئی تفصیل ډېر اوږد دے۔ خو د طوالت د وېرے د اختصار نه کا
واغیستے شو ۔ او په دے ځائے د کرلانړی د اولاد شجره تر پائے
اورسېده ۔

**د سواتیانو بیان :** د سواتیانو قوم اګر چه په نسب کښے په پښتن
نهٔ ورګډیږی خو هرکله چه دوئی پښتو وائی او ټول رواجونه ئے
پښتنو دی او د پښتنو سره ډېر ګډ راګډ دی څکه په پښتنو حساب دی
او د دوئی په ذیل کښے راوړلے کیږی وائی چه سواتی قوم د ډېر پخوا راتے
په سوات او باجوړ کښے اباد وو ۔ خو هرکله چه د یوسفزو غلبه شو

و همگی ملک سم تحت‌الجبل را در تحت تصرف خود آوردند متوجه ملک صوات شدند و با اهل صوات جنگها و محاربه در پیش آورده آخرالامر آنها را از انجا مستاصل ساخته جلاووطن گردانیدند و خود بصوات متصرف شدند و قوم صواتی از آنجا بملک پکهلی که مابین ملک یوسف‌زئی و کشمیر واقع است آمده متوطن شدند تا هنوز در انجا ساکن و متوطن اند و جمیع ایشان متفرق بسه گروه اند، یکی گبری دوم موتراوی سیوم مومیالی و گویند که در مردم گبری بعضی مردم اند که از اولاد سلطان اویس و سلطان بهرام و سلطان پکهل و سلطان جهانگیر اند که ایشان همه سلاطین صوات بودند و ایشانرا سلاطین جهانگیریه نیز میگویند و ایشان در اصل تاجک اند و ما بقیه غیر از ایشان از اقوام متفرق اند و قوم گبری را گبری از انجهته میگویند و گبر نام مکانی است در ملک باجوڑ که ایشان سکونت در انجا کرده بودند پس نسبت ایشان بدانجا کرده ایشانرا گبری میگویند و قوم خود را از اولاد متراوی میشمارند و میگویند که قدما و پیشینکان مایان بیکی حادثه از حادثات از یوسف‌زئی در وقتی که یوسف‌زئی در نواحی قندهار و ملک گاڑه و نشکی بودند جدا شده آمده در ملک صوات متوطن شدند و مایان از اولاد آنها ایم اما این قول ایشان بصحت نرسیده است و قوم مومیالی که ظاهرا

او تړوله سمه ئے واغیسته نو بیا ئے سوات ته مخه شوه او د سواتیانو سره ئے ډیر جنګونه اوشول او هغوئی ئے د هغه ملک نه باسول او شړونکی ئے کړل او پخپله په سوات قابض شول۔ سواتیان د هغه ځایه پکاٸ ته پورے وتل دا علاقه د یوسفزو د وطن او د کشمیر تر مینځه پرته ده۔ دا قوم اوس هم په دغه سیمه اباد دے۔ دوئی درے ډلے دی، یو ګبری، دویم متراوی او دریم مومیالی۔ او وائی چه په ګبریانو کښے ځنے خاق د سلطان اوپس په اولاد کښے دی۔ او سلطان اوپس، سلطان بهرام، سلطان پکهل او سلطان جهانګیر ټول په وار وار د سوات سلطانان تیر شوی دی۔ او دوئی ته جهانګیری سلطانان هم ویلے کیږی۔ دوئی د اصل نه تاجک دی۔ او پاتے نور ګډ وډ قومونه۔ او ګبری اولس په دے وجه په ګبری نوم مشهور شوے دے چه په باجوړ کښے ګبر نومے یوه ودانی ده چه دوئی به پکښے اوسیدل۔ پس د دغے ځائے په مناسبت دوئی ته یوسفزی ګبری وائی۔ خو هغه څوک چه ځان ته متراوی وائی د هغوئی دا دعویٰ ده چه د دوئی نیکونه د څه واقعے له کبله د یوسفزو نه په هغه وخت کښے رابیل شوی دی کله چه یوسفزو لا په ګاره نوشکی کښے اباد وُو۔ دوئی د هغـه ځایه سـوات ته راغـلی وُو او په سوات کښے تیکاؤ شوی وُو۔ او مـونږ (متراویان) د هغـوئی اولاد یُو۔ خو د دوئی دا قـول تحقیق طلب دے۔ او مومیـالی چـه ظاهر



یک خیل پنداشته میشود در اصل از خیلهای متعدده متفرقه قوم دهگان وغیره اند چونکه به یک یک مرد آمده فراهم شدند همه بیک خیل خوانده میشوند و درمیان هر یکی از ایشان خیلها بسیار اند اما بسبب تطویل بیان آنها کرده نشده بدین قدر اکتفا گردیده ـ

**بیان احوال قوم فرمولی :** قوم فرمولی خود را از اولاد کاکڑ میشمارند اما صحیح اینست که اولاد کاکڑ نیستند بلکه اولاد پسر خوانده وی اند ـ گویند که فرمول نام رودیست د ر میان کابل و غزنین هر کسی که بر کناره آن رود سکونتی دارد نسبت آن رود بوی کرده آنرا فرمولی میگویند پس چونکه فرمولی خود را افغانان میگویند ، افغانان نیستند بلکه بسبب سکونت آنجا و اختلاط افغانان آن نواحی مشهور بافغانان شده ـ

**بیان احوال بعضی سادات که مشهور بافغانان شده :** گویند که سید محمد گیسو دراز از ملک خود بیجا شده آمده درمیان قوم کاکڑ و کرلانی و شیرانی استقامت نموده متوطن گشت و از هر یک قوم دختری خواسته در عقد نکاح خود در آورد و ازان هر سه زوجه عفیفه وی چهار فرزند بوجود آمدند یکی مشوانی که از قوم دختر کاکڑ متولد شده نبیره کاکڑ است چنانچه اولاد مشوانی که ایشانرا نیز مشوانی

یو خپل حسابیږی په اصل کښې د دهګانو وغیرؤ د ډیرو خپلونو مجموعه دی۔ خو هرکله چه د دوئی لیږ لیږ کورونه سره یو ځائے شوی دی له دے کبله په یو خپل حسابیږی۔ دوئی په خپلو کښې هم ګنړ خپلونه دی۔ خو مختصر بیان ئے همدغه وو۔

**د فرمولو بیان:** فرمولی ځان د کاکړ په اولاد کښې شماری ۔ خو صحیح خبره دا ده چه دوئی د کاکړ اولاد نۀ دی۔ بلکه د هغهٔ د منلی ځوی اولاد وو۔ وائی چه فرمول نومے یو رود دے چه د کابل او غزنینو تر مینځه بهیږی هغه ځوک چه د دے رود په غاړه اباد وی د دهٔ نسبت ورته کیږی او فرمولی ورته ویلے شی۔ فرمولی اګر که ځان ته پښتانهٔ وائی خو په اصل کښې دوئی په پښتنو نۀ دی ورګډ۔ بلکه د پښتنو په ملک کښې د سکونت او د دوئی سره د ګډون په وجه دوئی په پښتنو حسابیږی ۔

د ساداتو ځینے کورنئی وائی چه سید محمد ګیسودراز چه د خپل وطن چه پښتانهٔ ورته وائی: نه شړونکے کړے شو نو هغه کاکړو ته په کډه راغے او د کاکړو، کرلانړو او شیرانو سره میشته شو ۔ او په دریو وارو قومونو کښې ئے یو یو وادهٔ اوکړو ۔ د هغهٔ د دے دریو ښځو نه ځلور ځامن پیدا شول ۔ یو مشـوانړی چه د کاکړے ښځے نه ئے وو او اولاد ئے هم په مشـوانړی یاد شـو ۔

میگویند و ایشان در ملک سره رود مابین شوراوک و بلوچ سکونت میدارند لودین از اولاد مشوانی است و ماندوری خود را اولاد مشوانی میشمارند اما بعضی میگویند که اولاد فرزند مشوانی نیستند بلکه اولاد پسر خوانده مشوانی اند ، والله اعلم بالصواب . دوم وردک سیوم هوتی که ایشان هر دو از دختر قوم کڑلانی متولد شده نبیره های کرلانی اند چنانچه اولاد وردک در دره شنیز متصل غزنی سکونت میدارند و اولاد هوتی درمیان قوم خٹک در کوه نیلاب سکونت میدارند و قوم مہیار خود را از اولاد وردک میشمارند بعضی میگویند که اولاد فرزند وردک نیستند بلکه اولاد پسر خوانده وردک اند والله اعلم بالصواب - چہارم اشترانی که از دختر قوم شیرانی متولد شده نبیرهٔ قوم شیرانی اند و اولاد اشترانی در ملک دهره مابین ڈیره غازیخان و ڈیره اسمعیل خان سکونت میدارند این ... اولاد سید محمد گیسودراز در اقوام افغانان که مرقوم شد و ماسوای ایشان چنانکه خجندی که بخوندی مشهور اند و نیز ایشانرا سیدزئی میگویند در قوم غورغشتی خصوصاً در قوم داوی اند و ایشان هر دو قوم چنانچه خوندی و داوی در گرد نواح قندهار سکونت میدارند و بختیار نبیرهٔ قوم شیرانی اند در قوم شیرانی مابین کوه گبر و ڈیره اسمعیلخان سکونت میدارند و به شیرانی سهیم و همدفتر اند چنانچه گویند ک

او د
اباد
ځان
مشوا
وو -
ئے د
وردک
ختکو
اولاد
ډیر
کښې
پښتنو
وائی او
اوسی -
کښې
دوئی -
دی او

او دوئ د سرهٔ رود په ملک کښې د شوراک او بلوچستان تر مینځه اباد دی۔ لودین د مشوانړی په اولاد کښې دی او ماندوری هم ځان د مشوانړی په نسب کښې ګڼړی۔ خو ځنې وائی چه دا د مشوانړی د خپل ځوی اولاد نهٔ وو بلکه د هغهٔ د منلی ځوی اولاد وو۔ والله اعلم بالصواب۔ دویم وړدک او دریم هونی چه دا دواړه ئې د کرلانړئی بښځې نه وو۔ او د کرلانړ خوریونه دی۔ چنانچه وړدک د غزنی په خوا کښې په شیتر دره کښې اوسی۔ او هونی په ختکو کښې د نیلاب سیند په غاړه اوسی۔ مهیار ځان د وړدک په اولاد کښې حسابوی والله اعلم بالصواب۔ څلورم اشترانی چه د شیرانی ابنه، نه ئې وو او د شیرانیانو خوریونه ورته وائی۔ د اشترانی اولاد ډیرو په ملک کښې د ډیره اسمعیل خان او ډیره غازیخان په مینځ کښې اباد دی۔ دا وو د سید محمد ګیسودراز د اولاد بیان چه په پښتنو سیدانو مشهور دی۔ د دوئ نه علاوه خجندی چه خونزی ورته وائی او په سیدزو هم یادیږی په غورغشتو خصوصاً په داویانو کښې اوسی۔ دا دواړه قومونه چنانچه خوندی او داوی د قندهار په خواوشا کښې استوږنه کوی۔ او بختیار چه د شیرانی قوم خوریونه دی د دوئ سره د کسی غر او ډیره اسمعیل خان په مینځ مینځ کښې اباد دی او د شیرانو شریکتیان او همدفتردی۔ چنانچه ویلې شی چه

سید اسحاق نام سیدی بغدادی ارش بسبب من الاسباب از ملک خود
بیجا شده آمده در قوم شیرانی استقامت نمود و زن از قوم شیرانی
خواسته در عقد نکاح خود درآورد چون فرزندی ازان زوجه عفیفه
متولد شده نامش سید حبیب نهاد چون قضای الله بعد ازان سید اسحاق
در اندک مدت فوت شده والدۀ سید حبیب بسبب ناچارگی و درماندگی
شوهر دیگر از قوم شیرانی کرده خود را بدو ازدواج ساخت چون
آنمرد از قوم شیرانی درانوقت مفلس بود بعد ازان بسبب برکت
مناکحت والدۀ سید حبیب و شرف آمدن وی صاحب جاه و مکنة شد
آن مرد ظاهر نموده گفت که این پسر را بهمه حال بخت یار است
تا بسبب وی من نیز بختیار شدم بعد ازان روز سید حبیب به بختیار
مشهور شده بعد ازان آن مرده شیرانی بختیار را با فرزندان خود سهیم
و هم دفتر نموده متاهل ساخت و چون که اولاد از وی بظهور آمده
در شیرانی محسوب شده مشهور بافغانان گردیدند پس این جمیع اقوام
عظام مذکوره در اصل سادات شریف‌النسب هستند اما بسبب خویشی
و دوستی و سکونت مع اهل افغان داخل ایشان شده مشهور بافغانان
گردیدند والله اعلم باحقیقته‌الحال، تا اینجا بود، بیان انساب اقوام
افغانان و متعلقان ایشان از سادات و غیر هم معه تصحیح آن که
به تفصیل مسطور شد و جمیع اما کن مذکوره افغانان مابین ایران و

سید اسحاق د بغداد یو سید زاده په څه وجه د خپل ملک نه را اووتو
او په شیرانو کښې مېشته شو - هم په دے قبیله کښې ئې واده
اوکړو - د دے ښځې نه د هغهٔ یو ځوے پېدا شو چه نوم ئې ورله
سید حبیب کېښوؤ - لږه موده پس سید اسحاق وفات شو د سید حبیب
مور د بدے ورځې له امله په شیرانو کښې بل مېړهٔ اوکړو - او
دغه شیرانے د دے ښځې د اغیستو په وخت ډېر خوار او نادار وو.
خو د دے سره د نکاح په برکت ئې ورځ ښهٔ شوه او دائې اوګنړل
چه د سید حبیب دے کورته د راتلو سره دا برکت پېدا شوے دے
ځکه به ئې خلقو ته ویل چه د دے سړی بخت یار دے - اؤ د دا
په برکت زهٔ هم بختور شوم - د دغه وخت نه پس سید حبیب پا
بختیار نوم مشهور شو - د هغې نه پس شیرانو بختیار د ځان نه لیکا
کړو او په جائیداد او دفتر کښې ئې حصه دار کړو - او هرکله چا
د بختیار اولاد اوشو نو هغوئی هم په پښتنو حساب شول - پس د
واړه لوئے او درانهٔ قومونه په اصل کښې (سوچه) سادات دی خو پا
خوښئ دوستئ او د پښتنو سره په کورکېدلئ په پښتنو ورګډ شوی
دی - او پښتانهٔ ګنړلے کېږی - والله اعلم با حقیقته الحال - دا وو
پښتنو او د دوئی د متعلقانو د نسب نامو د بیان تفصیل - او
دوئی د ټولو اولسونو کلی کورونه او کېږدئی ابادئی د ایران

توران و هند و سند است چنانچه حد شرقی ایشان حد کشمیر است و حد غربی ایشان تا دریاء ایلمن متصل هرات که درمیان این هر دو ولایت مفاصله دو نیم ماهه راه کم و بیش‌ست و حد شمالی ایشان حد قاشقار و حد جنوبی ایشان تا بکر و بلوچستان بروهی و این جمیع ممالک محصوره مابین حدود اربعه را ملک روه میگویند ازین سبب مردم افغانان متوطنان آنجای را در هند روهیله میگویند و پوشیده نماند که اگر چه اهل افغانان ولایت زاده از ذکر این مقامات مستغنی اند اما چونکه اصل غرض این بنده از انشاء این رساله تعلیم افغانان هندوستان زاده بود ازان سبب بیان هر ملک شده تا از نسبت و مکان هر قوم مطلع شده حظی وافر یابند - - - - - - - - - - - - - - - - - -

- - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - -

- - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - -

توقع از مکارم اخلاق فضلای زمان و ناظر این رساله آنست که اگر به سهوی و خطای بنده که درین رساله واقع شده باشد اطلاع یابند معترض نشوند لِاَنَّ الْاِنْسَانَ مُرَکَّبٌ مِنَ الْخَطَاءِ وَالنِّسْیَانِ وَ قَدْ قَالَ عَلَیْهِ السَّلَامِ رُفِعَ عَنْ اُمَّتِی السَّهْوُ وَالنِّسْیَانُ و حتی المقدور در اصلاح

توران او هند او سند تر مینځه دی۔ چنانچه د دوئی شرقی حد کشمیر او غربی حد ئے د هلمند رود دے چه د هرات سره بهیږی د دے دواړو تر مینځه کم و بیش د دوه نیمو میاشتو (پیاده) لار ده او قطبی سرے قشقار او سهیل پلو حد ئے په بکر او بروهی بلوچستان لګیدلے دے۔ په دے حدود اربعه کښے راګیر واړه ملکونه او علاقے په ''روه،، یادیږی په دے سبب د هغه ځائے اوسیدونکو پښتنو ته په هندکښے روهیله وائی ۔ د دے خبرے وضاحت هم باید چه اوشی چه اګر چه په ولایت کښے پیدا پښتانهٔ د دے علاقو په حقله د معلوماتو څه حاجت نهٔ لری خو هرکله چه زما غرض د دے رسالے په لیکلو کښے دا وو چه هغه پښتانهٔ چه په هند کښے پیدا وی هغوئی هم د خپل قام، قبیلے او علاقے په حقله د حقائقو نه خبر شی او په څه ښکره ئے راشی ځکه مے دا دومره تفصیلات را جمع کړل ۔

د علماؤ او پوهانو نه دا توقع لرم چه که هغوئی په دے بیاز کښے څه غلطی یا کمے بیشے اووینی نو هغوئی دے دا اوګنړی چا ((ځکه چه بنیادم جوړ شوے دے د خطا او د هیرے نه۔ او پ تحقیق فرمائیلی دی رسول علیه‌السلام پورته شوے ده له آمته زم (نهٔ شی نیوے په) خطا او هیره باندے۔ (که یوه غلطی تر اوشی) )) او تر خپله وسه دِ ئے د اصلاح کوشش اوکړی او چه خطا ئے پ

بکوشند و چشم از مقام سهو و خطا بپوشند که بزرگان گفته اند ـ

یقین بشنو از من که روز یقین　　نه بیند بدی مردم نیک بین

و برقبح و عوایب این بی بضاعت عدیم الاستطاعت نظر نفرمایند و بذیل کرم بپوشند که بمقتضای حدیث من ستر مسلماً ستره الله تعالیٰ فی‌الدنیا والاخره، الله تعالیٰ هم ستار عیوب است. و بچون و چرا و کیف ولا نسلم نپردازند که نیک و بد در عالم از یکدیگر جدا نباشد چنانچه اهل تحقیق گفته اند. **بیت :**

بود خار و گل باهم ای هوشمند　　چه در بند خاری تو گلدسته بند
بکم عیب مپسند بر کس جفا　　بزرگان چه گفتند خذ ما صفا

یعنی خذ ما صفا و دع ما کدر که مقولهٔ بزرگان است پس برین تقدیر ترصد آنست که از بسیاری سهو و خطا در گذرند و احیاناً اگر بعض مدققین حرف گیر نکته چینی فرمایند از همه اولا ـ

پیش ازین گفته اند اهل سلف　　عذر من صنف قد استهدف

اختتام می پذیرد خاتمه رساله بدین مناجات که مرقوم میگردد ـ

خدایا بذات خداوند یت　　باوصاف بیمثل و مانند یت
که چشم زروی سعادت مبند　　زبانم بوقت شهادت مبند
خدایا بذاتت مران از درم　　که صورت نه بندد دردیگرم
که مارا دران ورطه یک نفس　　ز ننگ دو گفتن بفریاد رس

نظر شی نو چشم پوشی دے پرے اوکړی۔ چه بزرګانو ویلی دی۔

یقین بشنو از من که روز یقین　　نه بیند بدی مردم نیک بین

او زما د کار عیبونو ته دے نهٔ ګوری او که په نظر ئے راشی نو پرده دے پرے اچوی۔ لکه چه په حدیث پاک کښے راغلی دی۔ من ستر مسلماً ستره الله تعالیٰ فی‌الدنیا والاخرة ـ الله تعالیٰ په خپله هم ستارالعیوب دے۔ او په چون و چرا غرض نهٔ لری څکه چه ښهٔ او بد په دے دنیا یو تر بله تړلی دی او پوهان وائی چه بیت:

بود خار و گل باهم اے هوشمند　　چه در بفد خاری تو گلدسته بند

بکم عیب مه پسند بر کس جفا　　بزرگان گفتند خذ ما صفا

یعنی خذ ما صفا و دع ما کدر چه د بزرګانو قول دے ـ پس د دے له کبله عفوے طلبګار یم ـ لکه چه وائی

پیش ازین گفته اند اهل سلف　　عذر من صنف قد استهدف

او دا رساله په دے مناجاتو ختمومه چه:

خدایا بذات خداوند یت　　باوصاف بے مثل و مانند یت

که چشم زروئے سعادت مبند　　زبانم بوقت شهادت مبند

خدایا بذاتت سران از درم　　که صورت نه بندد در دیگرم

که مارادران ورطهٔ یک نفس　　زننگ وز گفتن بفریاد رس

خدایا بحق بنی فاطمه    که بر قول ایمان کنی خاتمه
اگر دعوتم رد کنی در قبول    من و دست دامان آن رسول

## خاتمه

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهِ وَ لِکَاتِبِهِ وَ لِقَارِیْهِ وَ لِمَنْ یَنْظُرُ فِیْهِ وَ لِجَمِیْعِ الْمُؤْمِنِیْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِیْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ بِرَحْمَتِکَ وَ حُرْمَةِ حَبِیْبِکَ الْمُصْطَفٰی وَرَسُوْلِکَ الْمُجْتَبٰی عَلَیْهِ وَ عَلٰی آلِهِ السَّلَامُ بِرَحْمَتِکَ یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ ـ

### تاریخ اختتام رساله

بروز همایون و ماه رجب    بهنگام فرخ بوقت طرب
بتاریخ میمون که بر یکهزار    فزون بود یکصد وهشتاد چار
بعون الهی و فضل رسول    شده ختم این نسخهٔ دل قبول

### تمام شد

رساله خلاصة الانساب من تصنیف حافظ الملک مکرم الدوله حافظ رحمت خان

خدایا بحق بنی فاطمه که بر قول ایمان کنی خاتمه
اگر دعوتم رد کنی در قبول من و دستِ دامان آل رسول

## خاتمه

((اے خدایا اوبخښے مؤلف د دے کتاب او لیکونکے د دے کتاب او لوستونکے د دے او هغه څوک چه نظر کوی په دے کښے او تول مؤمنان سړی او مؤمنانے ښځے او مسلمانان سړی او مسلمانانے ښځے په رحمت خپل سره او په عزت د حبیب خپل چه غوره کړے شوے او قبول کړے شوے دے په دهٔ (محمد صلعم) او په اولاد د دهٔ (صلعم) دِ سلام وی په مهربانئ خپلے سره اے ډیر لوئے مهربانه د مهربانانو)) -

## د رسالے د اختتام تاریخ

بروز همایون و ماه رجب بهنگام فرح بوقت طرب
بتاریخ میمون که بر یک هزار فزون بود یکصد و هشتادوچار
بعون الهی و فضل رسول شده ختم این نسخهٔ دل قبول

## تمامه شوه رساله خلاصةالانساب

د حافظالملک مکرمالدوله حافظ رحمت خان نصیر جنگ تصنیف

نصیر جنگ مغفور بتاریخ غره جمادی‌الثانی ۱۲۱۱ هجری در بلده لکهنؤ تحریر یافت ـ



غره د جمادی‌الثانی ۱۲۱۱ هجری د لکهنؤ په ښار کښې نقل کړے شوه ـ او نن په دیرشم نومبر ۱۹۷۱ء مطابق ۱۱ شوال ۱۳۹۱ ھ ترجمه کړے شوه ـ



